# فهرست مضامين

# تقریظ شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا عبد الرشید صاحب

## (سابقه سنیټر)

الحمد لله رب العلمين والصلوٰة والسلام على
سيد الانبياء والمرسلين وعلى اصحابه اجمعين
برادر محترم مولانا لعل حبيب جان چې نهايت مخلص زړه ته
نږدې عالم فاضل انسان دے چې د علم النحو
په مشهور کتاب نحو مير باندې ئې ډير مفيد علمي [illegible]
کاوش کړيدے د ښه مرغه د دغه علمي شخصيت ماته د دوران
تفسير کښې ليکلې شوه چې د پوره کتاب د مطالعې او هغې
نه د استفادې موقعه ميلاو نه شوه
بهرکيف سرسري نظر سره ماته د دې شرحې د اهميت
او دقت او د حسن ترتيب احساس وشوه
يقيناً د نحو مير
د پېچيده مقالاتو د حل لپاره فقلي ترتيب ساده
عام فهم لهجه استعمال شوې دے امید دے چې
شاگردان به د دينه [illegible] استفاده وکړي
او ځان علمي تشنګي به دې سره ختمه کړي
الله دې مؤلف ته په دې عظيمه مجاهده لا تحصى
جزاء خير ورکړي او دغه نا ياب علمي تحفه ته دې
الله په عوامو او خواصو کښې شرف قبوليت ورکړي

العبد الضعيف
عبد الرشيد حقانى

# تقریظ حضرت مولانا مفتي محمد نعیم فیضاني صاحب

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

الحمد للہ العلام والصلاۃ والسلام علی من هدینا سبل السلام وعلی من هم نجوم الهدایة الأنام من الصحابة وائمة الدین العظام ولتابعین الکرام وبعد۔

پیارے بھائی محترم فاضل حضرت مولانا نور حبیب جان ساجد صاحب نے یہ بہترین تالیف (شرح الفقیر علی مغلقات نحو میر) علم النحو کے موضوع پر ایک بہترین کتاب (پشتو زبان میں) جمع کیا ہے۔

علم النحو اور علم الصرف یہ بنیادی علوم وفنون ہے اگر طلباء وطالبات ان علوم وفنون میں مہارت حاصل کر کے آگے پڑھتے ہیں تو باقی علوم میں ان کے لئے فہم وسمجھ کے اعتبار سے بہت آسانیاں پیدا ہوتی ہے۔

مولانا محترم نے جس آسان انداز اس مجموعہ کو جمع کیا ہے اب اسکے طلباء وطالبات عذر معذرت کی ضرورت نہیں رہیں۔

اللہ تعالیٰ سے دعا ہے کہ اللہ اپنے فضل خاص سے شرف قبولیت فرمائیں اور طلباء وطالبات کیلئے علمی سفر میں ترقی کا سبب بنائے۔

(بندہ محمد نعیم فیضانی)

# تقریظ محمد قاسم عاجز خادم العلماء جامعة أشرف العلوم الفاروقية (طوطه كان)

نحمدہ ونصلی علی رسولہ الکریم

اما بعد:

قرآن وحدیث کا علم تمام علوم سے اعلیٰ اور افضل ہے. قرآن وحدیث چونکہ عربی میں ہیں لھذا اس کے جاننے کیلئے علوم عربیہ کا سیکھنا انتہائی ضروری ہے.

علم نحو ان تمام علوم میں سرفہرست ہے. یہی وجہ ہے کہ علمائے کرام نے ہر دور میں تصنیف وتالیف درس وتدریس کے ذریعے علم نحو کی خدمت کرکے اس کی اہمیت کو اجاگر کیا ہے.

ابتدائی طلبہ کو علم نحو سے واقف کرانے کیلئے نحو میر کتاب کو جو مقبولیت عامہ اور پذیرائی حاصل ہوئی وہ ایک مسلّم حقیقت ہے اور اسی وجہ سے یہ کتاب تاحال تمام مدارس عربیہ میں اہتمام سے پڑھائی جاتی ہے.

نحو میر چونکہ فارسی زبان میں ہے. اور موجودہ زمانے میں فارسی زبان سے ہماری علمی وابستگی برائے نام بھی باقی نہیں رہی. اسی لئے بعض طلباء اردو زبان سے اجنبی ہوتے ہیں. لہٰذا اس اجنبیت کے ساتھ ساتھ کتاب کے قواعد ومسائل کا سمجھنا ان کے لئے ایک اضافی بوجھ بن جاتا ہے.

اس لئے پشتو زبان میں مولانا نور حبیب جان صاحب نے شرح الفقیر علی (مغلقات نحو میر) قابل تحسین کاوش کی ہے

زمانہ طالب علمی میں موصوف علم نحو میں خصوصی ذوق اور مہارت رکھتے تھے. موصوف نے اپنے تجربات کی روشنی میں نحو میر پر جو کام کیا ہے وہ لائق تحسین ہے.

بندہ نے کتاب کے چیدہ چیدہ مقامات کا مطالعہ کیا تو اُسے ایک عمدہ اور گراں قدر علمی محنت ہے.

دعا ہے کہ اللہ موصوف کی محنت کو قبول فرمائے اور کتاب کا نفع عام فرمائے.

محمد قاسم عاجز

خادم طلباء جامعہ اشرف العلوم الفاروقیہ طوطہ کان

تحصیل بٹ خیلہ ضلع مالاکنڈ

۱۷ رمضان المبارک ۱۴۴۳ھ

۱۹ اپریل 2022ء

# تقريظ حضرت مولانا آفتاب أحمد حقاني صاحب

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذی جعل الانسان صاحب النطق والبیان وجعل علم النحو آلۃ لصحۃ الفاظ القرآن والصلوۃ والسلام علی سیدنا محمد اشرف الکائنات المؤید بالآیات والمعجزات وعلی آلہ واصحابہ وعترتہ اجمعین اما بعد

الله پاک چہ د چا سرہ د خیر ارادہ وکړی نو هغہ تہ د دین پوهہ ورکړی او د دین پوهہ، د الله ج پاک د مقدس کلام قرآن پاک او د رسول الله صلی الله علیہ وسلم مبارکو احادیثو زده کول دی پس د قرآن او احادیثو الفاظ دی اوبل تہ معانی دی نو معانی او مطالب تشریح خو مفسرین او مجتهدین کوی او د الفاظو صحیح ادائیګی او پہ اعراباتو پوهیدل بغیر د علم نحو نہ کیږی هم د اوجہ دہ چہ بعض علماء لیکلی دی چہ علم نحو زده کول فرض کفایہ دی او د ایجاد د علم نحو پہ حق قول د ابو الاسود دؤلی چہ یو اعرابی اولوستل چہ ان الله بری من المشرکین ورسولہ پہ کسرہ سرہ چہ معنی غلط دہ نو ابو الاسود دؤلی ورتہ غصہ شو ورتہ یې وفرمائیل چہ دا کفر دے۔ بیا دے د حضرت علی رض خواتہ لاړے او عرض یې وکړو چہ نحو ئے ان اضع میزانا للعرب لیقوموا بہ لسانهم نو حضرت علی ورتہ وفرمائیل اقصد نحوہ او هم پدے وجہ یې نوم علم نحو مشهور شو

نو د دے ضرورت پیش نظر پہ هره زمانہ کے د علم نحوے د قواعدو کتابونہ لیکلے شوی چہ پہ د غہ کتابونو کے یو بنیادی کتاب نحو میر هم دے چہ دا کتاب یو بنیادی کتاب دے او د هر مبتدی د پاره ضروری دے نو پدے وجہ پہ هره زمانہ کے دے کتاب تہ علماء طلباء توجہ کړے او پہ هره ژبہ کے یې شرحے شوی نو د دغے شروحات سلسلہ کے یو شرح زمونږ رورا مولانا نور حبیب جان

شرح الفقیر علی مغلقات نحو میر هم پہ پښتو ژبہ کے و لیکلہ چہ ما ځہ پہ ځے وکتلہ چہ ډیره عام فهم دہ چہ د یره سبق سره تمرینات نوره هم فائده مند کړه دالله تعالی نہ دا دعا دہ چہ الله تعالی پہ خپل دربار کے قبولہ کړی او د مؤلف د پاره یې د آخرت ذخیره جوړه کړی آمین آفتاب احمد حقانی بن وکیل محمد مدرس مدرسہ ابن عباس رض نخر بهائی

# سبب تاليف

ستاسو په علم کښې به وي چه زمونږه دَ علاقې اکثر خلق دَ عصري تعليم دَ کمې په وجه باندې په ليکلو او لوستلو کښې کمزورې دي. په اولني کال چه ما کله دَ نحو مير درس کولو، ماته هم تکليف وو چه اول به مي په بورډ ليکلو طلباؤ به املاء دَ زباني بيان نه نشو کولے، نو طلباؤ ته هم تکليف وو نو لهذا ما دَ خپل استاذ محترم قاري ومولانا محمد قاسم صاحب دامت برکاتهم العاليه بټ خيله والاکوم تقرير چه څما سره په اردو ژبه کښې محفوظ وو هغه مي صرف پښتو ژبه ته منتقل کړو او دَ

زاد الفقير، فتح المنير، درس ارشاد الصرف ونحو مير،
عزيز النحو، الفجر المنير، تسهيل النحو،

وغيره کتابونو نه مي پکښې بعض آساني خبرې دَ طلباؤ دَ فائدے لپاره رانقل کړي دي.

دَ الله تعالیٰ نه دعا کوم چه دا کتاب څما او څما دَ مور او پلار او اساتذه کرامو لپاره دَ آخرت نجات وګرځوي، آمين.

په دې کتاب کښې راسره خصوصي تعاون مفتي حمد الله صاحب دامت برکاتهم العاليه او مفتي محمد نعيم فيضاني دامت برکاتهم العاليه، او ابو القاسم مولانا ظهور احمد نعماني صاحب دامت برکاتهم العاليه کړے دے، او قاري حيات الله صاحب راسره په چاپنګ وغيره کښې ډير کوشش کړے دے، الله تعالیٰ دے دې ټولو ته پوره پوره اجر په دواړو جهانو کښې ورکړي.

دَ جمعرات په شپه 2021-12-08 باندې مکمل شو (الحمد لله)

نور حبيب جان ساجد 0302-8333911 0347-1953485

بسم الله الرحمٰن الرحيم

## دَ هر علم دَ شروع کيدو نه مخکښ يو څو خبرې پيژندل ضروري دي

دَ هر علم دَ شروع کيدو نه مخکښ يو څو خبرې پيژندل ضروري دي. تعريف دَ علم، موضوع دَ علم، غرض و غايت دَ علم، مقام دَ علم، واضع دَ علم او دَ مصنف حالات.

## دَ نحو لغوي واصطلاحي تعريف، موضوع، غرض و غايت

تعريف: پيژندل ځکه ضروري دي چه طلب او تلاش دَ مجهول څيز رانشي.

موضوع: پيژندل ځکه ضروري دي چه په مقصود او غير مقصود کښ امتياز او جداوالے راشي.

غرض وغايت: پيژندل ځکه ضروري دي چه طالب العلم خپل محنت بے کاره او عبث و نهٔ ګنړي.

مقام دعلم: پيژندل ځکه ضروري دي چه په ايزده کولو کښ نور هم شوق پيدا شي.

واضع د علم: پيژندل ځکه ضروري دي چه دَ هغه شان وشوکت په زړه کښ قرار ونسي.

## تدوين نحو

سوال: دَ علم نحو تدوين کله شوے دے او چا کړے دے او ولې ئې کړے دے؟

## دَ علم نحو دَ وضع او تدوین په باره کښې مختلف اقوال دي:

القول الأول: دَ حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې یو اعرابي خلقو ته اؤوے چه داسي څوک شته چه ماته دَ قرآن څه حصه اؤوائي. نو یو سړي ورته دَ سورۀ برأة ابتدائي آیتونه اولوستل اَو دَ ﴿انّ اللّٰهَ بَرِیٓءٌ مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ وَرَسُوْلُه﴾ په ځائے ئے ورسولِه اولوستلو یعني دَ مرفوع په ځاې ئې مجرور أوې. چه معنی ئې دا شوه چه بیشکه الله تعالی دَ مشرکانو نه او دَ خپل رسول نه بري دے. نو اعرابي اؤوے. چه کله الله تعالی دَ خپل رسول نه بري دے نو څه ترینه هم بري یم. چه کله حضرت عمر رضي الله عنه ته دَ دے پته اولګیده نو اعرابي ئې را اوغوختلو او ورته ئے اؤوے چه په رسولُه ضمه ده او مطلب ئے دا دے چه الله تعالی او دَ هغه رسول ﷺ دَ مشرکانو نه بري دے.

دَ دے نه روستو حضرت عمر رضي الله عنه ابو الأسود ته حکم اوکړو چه نحو وضع کړه نو ابو الأسود دُؤلي دَ نحو قواعد جمع کړل.

القول الثاني: حضرت علي رضي الله عنه یو اعرابي اولیدلو چه دا آیت ئے لوستلو چه ﴿لَا یَأْکُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُوْنَ﴾ نو دَ "الخاطئون" په ځائے باندي ئے "الخاطئین" اولوستلو نو دَ هغه ورځے نه ئې دَ نحو دَ وضع کولو عزم بالجزم اوکړو أو دَ نحو څه حصه ئې جمع کړه.

①اَلْکَلَامُ کُلُّه لا یخرج عن اسمٍ وفعلٍ وحرفٍ جاء لمعنی.

②کُلُّ فَاعلٍ مَرْفُوْعٌ.

③وَکُلُّ مفعولٍ منصوبٌ.

④ وَکُلُّ مضافٍ إلیه مجرورٌ.

القول الثالث: په یو روایت کښې دي چه یو ځل دَ أبو الأسود لور أووے چه "ما أحسن السمآءَ" یعني څه شي آسمان خائسته کړے دے، نو پلار ورته

أووے چه ستورو، نو هغې ورته أووے چه ځه دا تپوس نه کوم چه څه شي آسمان خائسته کړے دے، بلکه ځه دَ آسمان په خکلي والي باندے تعجب کوم، نو پلار ورته أووے چه بیا داسے وایه چه "ما أحسن السمآء" (یعني آسمان څه خائسته دے) نو دَ هغه ورځې نه أبو الأسود دَ نحو وضع کولو طرف ته توجه اوکړه.

القول الرابع: بعض حضرات وائي چه دَ علم نحو اولنے واضع عبد الرحمٰن بن هرمز الأعرج ؤو. أو بعض حضرات فرمائي چه نصر بن عاصم ؤو. لیکن راجح قول دا دے چه أول واضع ئې حضرت علي رضي الله عنه ؤو. (مقدم شرح جامي للعلامة محمد عبد العلي چتوري)

## دَ علم نحو فضائل

1. دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه منقول دي چه «تَعَلَّمُوا النَّحْوَ كَمَا تَتَعَلَّمُوْنَ السُّنَنَ وَالْفَرَائِضَ».
2. النَّحْوُ فِي الْكَلَامِ كَالْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ.
3. النَّحْوُ لِلْعُلُوْمِ كَالضَّوْءِ لِلنُّجُوْمِ.
4. صاحب دَ "مفتاح السعادة" لیکلي دي چه دَ علم نحو حاصلول فرض کفائي دي ځکه دَ کتاب الله أو دَ سنت دَ رسول ﷺ نه په استدلال کولو کښې دَ دے ضرورت راځي.

## دمصنف رحمه الله مختصر تعارف

نوم ئې علي بن محمد بن علي جرجاني وو، نسباً سادات وو، ځکه ورته سید شریف او سید السند لقب ورکړے شوے وو، په سن740 هجرے کښې په جرجان ښار کښې پیدا شوے وو، سن 816 هجرے کښې

وفات شوے دے، أو مصنف ﷫ ته مِير ځکه وائي چه ډير کتابونه ئې په لفظِ مِير سره ليکلي دي مثلاً:

(1) صرف مير (2) نحو مير (3) مير قطبی، دينځ علاوه حاشيه مطوّل، شرح مواقف صغریٰ وکبریٰ وغيره.

## دَ علم النحو لغوي أو اصطلاحي تحقيق

نحو په لغت کښ په ډيرو معنون راځي:

(1) قصد ، نَحَوْتُ هٰذا، (2) طرف، ذَهَب نَحْوَ الْبَيْتِ، (3) لاره، هٰذا النَّحْو السَّوِيُّ، (4)قسم، هٰذا عَلٰى أَرْبَعة انحاء، (5) مثل، هٰذا نَحْوُه (6) فصاحت، مَا أَحْسَنَ نَحْوكَ فِي الْكَلَامِ.

اراده طرف قبيله
نَحَوْنَا نَحْوَ نَحْوِك يا حَبِيْبِي
لري کړه مقدار
نَحَوْنَا نَحْوَ أَلْفٍ مِنْ رَّقِيْب

مثل
وَجَدْناهُمْ مَرِيْضًا نَحْوَ قَلْبِيْ
قسم
تَمَنَّوْ مِنْكَ نَحْوًا مِنْ زَبِيْبٍ

دعلم النحواصطلاحي تعريف: هُوَ عِلْمٌ بِأُصُوْلٍ يُّعْرَفُ بِهَا أَحَوالُ أَوَاخرِ الْكَلِمِ الثَّلَاثِ مِنْ حَيْثُ[1] الْإِعْرابُ وَالْبِنَاءُ وَكَيْفِيَّةُ تَرْكِيْبِ بِعْضِهَا مَعَ بَعْضٍ.

د علم النحو موضوع: الْكَلِمَةُ وَالْكَلَامُ مِنْ حَيْثُ الْإِعْرَابُ وَالْبِنَاءُ.

د علم النحوغرض و غايت: صِيَانَةُ الذِّهْنِ عَنِ الْخَطَإِ اللَّفْظِيِّ فِي كَلَامِ الْعَرَبِ مِنْ حَيْثُ الْإِعْرَابُ وَالْبِنَاءُ.

يادا چه عربي عبارت بغير دَ اعراب نه په روانګئ سره وئيلو باندي قادر شي.

---

(1) حيث اضافت جملے ته کيږي که ورپسے مفرد لفظ راشي هغه به مرفوع وي (جامع الدروس العربية).الجزء الثالث صفحه 62

## بسم الله الرحمٰن الرحيم

## دَ بسم الله دَ الفاظو لغوي تحقيق او ترکيب.

په بسم الله کښې "ب" حرف جر دے او دَ اِستعانت په معنى ده او "اسم" دَ بلندي او نشانې په معنٰى دے، ليکن دلته دَ نوم په معنٰى دے، او لفظ "الله" اسم جلاله، هغه ذات ته وائي چه دَ هر عيب نه پاک وي او هر صفت دَ کمال ورلره ثابت وي، او "الرحمٰن" عام مهربان اور "الرحيم" خاص مهربان.

ترکيب: "ب" حرف جر "اسم" مضاف، لفظ "الله" اسم جلاله موصوف، "الرحمٰن" صفتِ اول او "الرحيم" صفتِ ثاني. موصوف سره دَ دواړو صفتونو سره دا مضاف اليه شو دَ پاره دَ "اسمَ" مضاف، مضاف سره دَ مضاف اليه دا مجرور دَ پاره دَ "ب" حرف جر، جر سره دَ مجرور نه دا متعلق په "أشرع" فعل پورې "أَشْرَعُ" فعل سره دَ خپل فاعل او متعلق نه جمله فعيله خبريه.

## په لفظ "رحمٰن" او "رحيم" کښې فرق

1. بعض حضرات فرمائي چه دواړه دَ مبالغه صيغي دي څه فرق پکښې نشته.
2. بعض حضرات فرمائي چه په "الرحمٰن" کښې مبالغه ډيره ده په نسبت دَ "الرحيم"، په "الرحمٰن" کښې عموم دے يعني عام رحمت والا او په "الرحيم" کښې خصوص دے يعني خاص رحمت والا، نو عبارت به داسي شي "رَحْمٰنُ الدُّنْيَا وَالْآخِرةِ وَرَحِيْمٌ فِي الْآخِرَة". لهذا دَ دے وجے نه دَ لفظ "الرحمٰن" استعمال بغير دَ اضافت نه دَ بل چا لپاره صحيح ندے.

فائده: نو ځکه ئې لفظ "الرحمٰن" په "الرحيم" مقدم کړے دے.

فائده:

1. مصنفؒ دَ کتاب ابتداء په بسم الله سره ځکه اوکړه چه دَ قرآن اتباع ئې اوکړه چه په قرآن کښې شروع دَ بسم الله نه شوے ده.
2. چه په حديث شريف عمل راشي.
   كُلُّ أَمْرٍ ذِيْ بَالٍ لَم يُبْدَأْ بِبِسْمِ اللهِ فَهُوَ أَقْطَع يا أَبْتَر
   لَا يبدء فيه بِبسم الله الرحمٰن الرحيم فَهو أقطع.
3. چه په مشرکانو رد وشي ځکه چه هغوي څه کار شروع کوي نو په بسم اللات والعزى سره ئې کوي.

## دَ نحو مير خطبه

اَلْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالِمِيْنَ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ، وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَى خَيْرِ خَلْقِهِ مُحَمَّدٍ وَّآلِهِ أَجْمَعِيْنَ.

ترجمه: ټول حمدونه الله لره ثابت دي چه دَ مخلوقاتو رب دے او خائسته انجام دَ متقيانو لپاره دے او نزول دَ رحمت دي وي او سلامتيا دي وي په هغه چا چه په تمام مخلوق کښې افضل دے چه نوم ئې محمد ﷺ دے او دَ هغه په ټول آل.

الحمدُ: مرفوع دے په ترکيب کښې مبتداء واقع شوے دے، او مبتداء مرفوعه وي، "لله" کښې "لام" حرف جر دے او لفظ "الله" موصوف "رب العالمين" مرکب اضافي کيدو سره دا صفت شو دَ لفظ "الله" دَ پاره، موصوف سره دَ صفت نه مجرور دَ حرف جر لپاره، جار سره دَ مجرور نه دا په اعتبار دَ متعلق سره خبر دَ پاره دَ مبتداء، او مبتداء سره دَ خبر نه جمله اسميه خبريه او معنًا انشائيه، او "رب العالمين" دَ ماقبل لپاره په منزله دَ

دلیل دے. الله لره حمد ځکه ثابت دے چه دَ تمام مخلوق پالونکے دے.

العٰلمین: دَ "عالَم" جمع ده، او ما سواء دَ الله نه باقي جهان ته عَالَم وائي او دیته عالَم ځکه وائي چه دا مشتق دے دَ "عَلَم" نه اور "عَلَم" علامت او نشاني ته وائي او دا تمام مخلوق علامه دَ دې خبرے ده چه الله موجود دے ځکه چه صناعت په صانع باندي دلالت کوي.

العاقبة: سره مونږ قید دَ حُسن عاقبت لګولو ځکه چه مطلق عاقبت خو دَ کافر دَ پاره هم شته.

والصلٰوة: سره مونږ قید دَ رحمت ولګولو ځکه چه کله دَ "صلٰوة" نسبت الله ته وشي نو په معنی دَ رحمت سره وي.

## فائده: لفظِ "صلوٰة" په څلورو معنو سره استعمالیږي.

(1) دعا، (2) رحمت، (3) استغفار، (4) تسبیح وتهلیل

چه دَ "صلٰوة" نسبت الله ته وشي نو په معنی دَ رحمت سره وي، او چه دَ "صلٰوة" نسبت انسان ته وشي نو په معنی دَ دعا سره وي، اوچه دَ "صلٰوة" نسبت فرشتو ته وشي نو په معنی دَ استغفار سره وي، او چه دَ "صلٰوة" نسبت مرغو وغیره ته وشي نو په معنی دَ تسبیح او تهلیل سره وي.

والسلام: سلام په معنی دَ سلامتیا سره.

خیر: اسم تفضیل په معني دَ غوره سره.

خلقه: خلق په معنی دَ مخلوق.

محمد: دَ باب تفعیل نه دَ اسم مفعول صیغه ده په معنی دَ زیات تعریف کړے شوے.

وآله: آل په دوه قسمه دے (1) نسبي (2) حسبي.

آل نسبي: هغه ته وائي چه زکٰوة اخستل ورلره حرام وي.
مثال: اولاد دَ حضرت علي رضي الله عنه اودَ عقيل رضي الله عنه او دَ حارث رضي الله عنه.
آل حسبي: هغه ته وائي چه په هغې باندې دَ نبي كريم ﷺ دا قول صادق راځي: "كل تقي ونقي فهو آلي".
تقي: چه دَ حرامو نه ځان بچ کوي.
نقي: چه دَ حرامو نه او دَ هغه څيزونو نه چه په کوم کښې شبه وي دَ هغې نه ځان ساتي، او دَ آل اطلاق كله نه كله په ازواج مطهرات باندې كيږي.

## خطبه

## أَمَّا بعد نه تر عَوْنِه پورې

أَمَّا بعد: بِدَاں أَرْشَدَكَ اللّٰهُ تَعَالىٰ كه اِيْں مُخْتَصَرِيْسَتْ مَضْبُوْط دَرْ عِلْمِ نَحْوُ، كِه مُبْتَدِيْ رَا بَعْدِ أَزْ حِفْظِ مُفْرَدَاتِ لُغَتْ وَمَعْرِفَتِ اِشْتِقَاقْ وَضَبْطِ مُهَمَّاتِ تَصْرِيْف بَآسَانِي بكَيْفِيَّتِ تَرْكِيْب عَرَبِيْ رَاهْ نُمَايَدَ، وَبَزُوْدِيْ مُبْتَدِيْ رَا مَعْرِفَتِ إِعْرَابْ وَبِنَاءَ وَسَوَاد خُوَانْدَنْ تَوَانَائِيْ دِهَدْ. بِتَوْفِيْقِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَعَوْنِهٖ.

أمّا بعد: أَمّا حرف شرط دے او دَ شرط لپاره جزاء ضروري وي نو بِدَانْ ورله جزاء ده.
بَعْدُ: دا اسم ظرف دے او دَ اسم ظرف قاعده دا ده چه دا به هميشه مضاف وي، خو دَ دے درې حالتونه دي، په يو حالت کښې مبني دے او په دوه کښې معرب دے.
1) كه چرے مضاف اليه په عبارت کښې نه وي او په نيت کښې وي لکه

په دې مقام کښې شته ځکه چه اصل عبارت داسې دے چه "أما بعد الجمل الثلاثة" نو په داسې حالت کښې به دے مبني وي په ضمه سره.

2) أو که چرے مضاف الیه په عبارت کښې وي لکه "مِنْ قَبْلِ كُلِّ شَيْءٍ وَمِنْ بَعْدِ كُلِّ شَيْءٍ" نو معرب به وي.

3) چه مضاف الیه ئې په عبارت کښې هم نوي او دَ متکلم په نیت کښې هم نوي لکه "رُبَّ بعدٍ كَانَ خير مِنْ قَبلٍ" نو معرب به وي ځکه چه دَ مبني والي علت پکښې نشته.

بدان أرشدك الله إلخ: پوهه شه اے دَ عربي علم شروع کونکیه الله تعالیٰ دي ستا رهنمائي وکړي.

سوال: باقي کتاب خو په فارسي کښې لیکلے شوے دے لیکن مصنف دا دَ دُعا کلمات په عربي کښې ولي ووليکل؟

جواب:چونکه دَ دُعا کلمات الله جل جلاله ته په لغتِ عربي کښې محبوب وي نو ځکه ئې داسې وکړه.

مختصر: چه عبارت قلیل وي او مطلب او مقاصد ئې ډیر وي.مضبوط: لیکلے شوے.مبتدي: شروع کونکے.لغت: یعني هغه آواز چه دَ هغې په زریعه سره انسان دَ خپلو مقاصدو تعبیر کوي.معرفت: پیژندل.اشتقاق: شلول، او په اصطلاح کښې علمِ اشتقاق هغه علم دے چه دَ هغې په ذریعه سره یو لفظ دَ بل دویم داسې لفظ نه جوړ کړے شي چه په دواړو کښې لفظي او معنوي اعتبار سره مناسبت او اتحاد وي.مثال: ضَرَبَ دَ ضَرْبٌ نه مشتق دے.ضبط: یادول. مهمات: په غم کښې اچونکے څیز، لیکن دلته ترینه دَ علم صرف مشکل ګردانونه مراد دي.تصریف: دَ صرف دویم نوم دے.ترکیب: اجزاؤ ته ترتیب ورکول أو دَ ځائے کولو ته ترکیب وائي.راه: لاره. نماید: خوستل. اعراب وبناء: اعراب یعني کلمه معرب کیدل.بناء: یعني کلمه مبني کیدل. سواد:

ملكه حاصلول. خواندن: ووئيل. توانائي: طاقت.دهد: ورکول.عون: مدد.

## دَ خطبي مختصره خلاصه أو تشريح

حضرت ميرﷺ فرمائي په دې عبارت سره

1) چه دا کتاب "نحو مير" يو مختصر کتاب دے چه الفاظ ئې قليل او مقاصد او مطالب ئې کثير دي.
2) دا کتاب دَ علم نحو دَ مبتدي طلباؤ لپاره ليکلے شوې دے او دهٔ دي سره سره حضرت ميرﷺ طلباؤ ته دَ رغبت ورکولو دَ پاره فرمائي چه په ووئيلو سره به طلباء کرامو ته درې غټې فائدې حاصلے شي.

1. دَ عربی عبارت صحيح ترکيب کول او په مطلب ئې په آسانه سره پوهيدل.
2. معرب او مبني او اعراب به په آسانه پيژني.
3. طالب العلم به په عربي عبارت باندی قادر شي بغير دَ اعراب نه.

ليکن دا درې فائدی به هغه وخت حاصليږي چه درې شرائط وي:

اول: علم لغت ياد وي، دويم: علم اشتقاق ياد وي، دريم: دَ علم صرف مشکل گردانونه ياد وي.

ليکن دَ دی شرائطو باوجود چه توفيق الٰهي او نصرت الٰهي شاملِ حال وي نو فائده به کيږي، ورنه نه.

## دَ فصل لغوي واصطلاحي تعريف

فصل: په لغت کښ جدائي او قطع کولو ته وائي.

اوپه اصطلاح کښ: چه بحث اول ختم شي او بحث ثاني شروع شي.

## دَ لفظ لغوي واصطلاحي تعريف

لفظ: دَ انسان دَ خُلې يا ژبې نه چه څه وځي هغې ته لفظ وائي.

لفظ: په لغت کښې "الرمي" غُرځولو ته وائي. مثال: "أَكَلْتُ التَّمْرَةَ وَلَفَظْتُ النَّوَاةَ".

په اصطلاح کښې "مَا يَتَلَفَّظُ بِهِ الإِنْسَانُ قَلِيْلًا كَانَ أَوْ كَثِيْرًا، مُهْمَلًا كَانَ أَوْ مَوْضُوْعًا، حَقِيْقَةً كَانَ أَوْ حُكْمًا، مُفْرَدًا كَانَ أَوْ مُرَكَّبًا". چه انسان پرې تلفظ کوي که معنی دار وي او که بې معنی وي، که لږ وي او که ډير، حقيقتًا وی او که حکمًا، مفرد وي او که مرکب.

فائده: دَ "مَا يَتَلَفَّظُ بِهِ الْإِنسَان" په قيد سره ترينه دَ فرشتو کلام او دَ جناتو کلام خارج شو، حالانکۀ دَ دوي کلام هم دَ الفاظ دَ قبيلے نه دے.

دَ فرشتو کلام لکه:

إِنَّ فِي الْجَنَّةِ نَهْرًا مِنْ لَّبَنْ لِعَلِيٍّ وَحُسَيْنٍ وَحَسَنْ

دَ جناتو کلام لکه:

وَقَبْرُ حَرْبٍ بِمَكَانٍ قَفْرُ وَلَيْسَ قُرْبَ قَبْرِ حَرْبٍ قَبْرُ

## أقسام لفظ

لفظ په دوه قسمه دے: (1) مُستَعْمَل، (2) مُهْمَل.

مُسْتَعْمَلْ: معنى دار لفظ ته وائي، مثال: اوبه، ډوډې.

مُهْمَلْ: بې معنى لفظ ته وائي، مثال: أُوبه هُوبه، ډوډي موډي. دے مثال کښې دا "واني" او "موډي" مهمل لفظ دے.

په کلام عرب کښې لفظ مستعمل په دوه قسمه دے، مفرد او مرکب.

دمفرد تعريف: چه يو لفظ وي او په يو معنى دلالت کوي. مثال: يَد.

فائده: مصنف رحمه الله دَ مفرد په تعريف کښې دَ تنها لفظ ذکر کړے دے،

په دي سره ئې دے ته اشاره وکړه چه دَ مفرد دَ پاره دا ضروري ده چه هغه به يو لفظ وي. مثال: زيد، که چرته دوه لفظونه وو او په يوه معنى ئې دلالت کولو نو مفرد به نه وي، مثال: عبدالله چي کله دَ چا نوم وي. او که چرته يو لفظ وي او په دوو معنو باندې ئې دلالت کولو نو بيا به هم مفرد نه وي، مثال: بِصْرِيٌّ، بَاجَوړِيٌّ.

او مفرد ته کلمه هم وائي او کلمه په درې قسمه ده: اسم، فعل، حرف.

## دَ اسم تعريف او معنى لغوي

داسم لغوي معنىٰ: (1) دَ نحات کوفه په نزد "اسم" دَ "وِسْمٌ" نه مشتق دے په معنى دَ علامت سره.

(2) دَ نُحات بصره په نزد "اسم" دَ "سِمْوٌ" نه مشتق دے په معنى دَ بلندي سره.

دَ اسم اصطلاحي تعريف: كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِي نَفْسِهَا وَلَمْ يَقْتَرِنْ مَعْنٰهَا بِأَحَدِ الْأَزِمَنَةِ الثَّلَاثَةِ. لکه رَجُلٌ، امْرَأَةٌ. چه په خپله معنى مستقله باندې دلالت کوي او دَ دريو زمانو نه ئې دَ يوې زمانے سره تعلق نه وي.

## دَ فعل تعريف او معنى لغوي

دَ فعل لغوي معنىٰ: حَدَث نَوئے څيز يا کار کول.

اوفعل په اصطلاح کښې: كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِي نَفْسِهَا وَيَقْتَرِنُ مَعْنٰهَا بِأَحَدِ الْأَزِمَنَةِ الثَّلَاثَةِ. لکه ضَرَبَ يَضْرِبُ. چه پخپله معنى مستقله باندې دلالت کوي او دَ دريو زمانو نه ئې دَ يوې زمانے سره تعلق وي.

## دَ حرف تعريف او لغوي معنیٰ

حرف په لغت کښې: طرف او کنارې ته وائي لکه دَ عربی ِ مقوله ده جَلَسْتُ حَرْفَ الْوَادِي أَيْ طَرَفَ الْوَادِي.

اوحرف په اصطلاح کښې: كَلِمَةٌ لَاتَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى فِي نَفْسِهَا وَ لَمْ يَقْتَرِنُ مَعْنٰهَا بِأَحَدِ الْأَزِمَنَةِ الثَّلَاثَةِ. چه پخپله معنی مستقله باندې دلالت نه کوي ترڅو چه دَ بَلې کلمې سره ضم شوي نه وي. لکه مِنْ او إِلیٰ.

مثال: سِرْتُ مِنَ الْبَصْرَةِ إِلَى الْكُوْفَةِ.

یا چه پخپله معنی ورکولو کښې بَلې کلمه ته محتاج وي.

## چنانچه در تصریف معلوم شده است

مصنفؒ په دې عبارت سره دیته اشاره وکړه چه صرف دَ نحوې نه مخکښې وئیل پکار دي.

## أَمَّا مرکب لفظي باشدإلی آخره

دَ دې ځائے نه مصنفؒ دَ مرکب تعریف ذکر کوي.

## دَ مرکب تعریف

مرکب: هغه لفظ ته وائي چه دَ دوه یا زائدو کلماتو نه جوړ شوے وي.

مثال: (1) زَيْدٌ قَائِمٌ، (2) سَعِيْدٌ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ.

خلاصه: چه زائد کلماتو لره څه حَد مقرر نه دې.

### اِجراء

بَكْرٌ، عُمَرُ، رسولُ الله، شَمْسٌ، نَصَرَ، ذُبَابَةٌ، حَمِدَ سَعِيْدٌ، كَسَبَ، الْمَاءُ،

خَاتَمُ الْفِضَّةُ، المَطَرْ، عُصْفُورٌ، أَكَلَ القِطُّ، الثَّوْبُ نَظِيْفٌ، ثَلٰثةَ عَشَرَ، سَوْفَ، قَدْ، حَضَرَ مَوْتُ، إلٰى.

## مركب بردو گونه است مفيد وغير مفيد

دَ دې ځائے نه مصنف عليه الرحمه دَ مركب قسمونه بيانوي:

مركب په دوه قسمه دے: (1) مركب مفيد ، (2) مركب غير مفيد .

## دَمركب مفيد تعريف

چه متكلم خبره اوكړي او خاموش شي او سامع ته خبر په جمله خبريه كښې يا طلب په جمله انشائيه كښې معلوم شي.

دَ خَبر مثال: زَيْدٌ قَائِمٌ، زَيْدٌ نَائِمٌ، زَيْدٌ عَالِمٌ.

دَ طلب مثال: ايْتِ بِالْمَاءِ، اِحْفَظِ الدَّرْسَ، اُنْظُرْنِي.

فائده1: او ديته مركب مفيد ځكه وائي چه مفيد دَ باب افعال نه دَ اسم فاعل صيغه ده په معنٰى دَ فائدې وركولو ، او دا هم فائده وركوي.

فائده2: دَ مركب مفيد ټول شپږ نومونه دي: (1) مركب مفيد ، (2) مركب تام، (3) مركب اسنادي، (4) اسنادي تام يا مركب كلامي، (5) جمله، (6) كلام.

او مشهور نوم ئې جمله ده.

## دَ مركب غير مفيد تعريف

چه متكلم خبره وكړي او خاموش شي او سامع ته خبر يا طلب معلوم نشي، مثال: غُلامُ زيدٍ، خَاتَمُ الفِضَّة، ملك المَوْتِ، رسُولُ الله، التِّلْمِيْذُ الْمُجْتَهِدُ.

## پس جمله بر دو قسم اَست

دَ دلته نه مصنفؒ دَ جمله قسمونه ذکر کوي، چه جمله په دوه قسمه ده **(1)** جمله خبريه، **(2)** جمله انشائيه.

## بدانکه جمله خبريه إلٰى آخره

## دَ جمله خبريه تعريف

چه دَ هغې متکلم ته دَ دروغو او رشتيا نسبت کيږي يا دَ هغې ويونکي ته دَ صدق او کِذب نسبت کيږي قطع نظر دَ دلائلو خارجيو نه، زَيْدٌ قَائمٌ، الْأَرْضُ فَوْقَنَا.

فائده: چه نفس کلام ته وګورې نو فيصله دَ رشتيا او درغو کولے شي.

## وَأَنْ بَر دو نوع است

مصنفؒ فرمائي چه جمله (دا تقسيم دَ مطلق جملے دے که خبريه وي او که انشائيه) په دوه قسمه ده.

**(1)** جمله اسميه، **(2)** جمله فعليه.

## دَ جمله اسميه تعريف

چه دَ هغې اولنے جزء اسم وي او دويم جزء کله اسم وي ، مثال: زَيْدٌ قائمٌ، او کله فعل وي، مثال: زيدٌ أَکَل، زيدٌ ذَهَبَ.

## دَ جمله فعليه تعريف

چه اولنے جزء به ئې هميشه لپاره فعل وي او دويم جزء به ئې هميشه لپاره اسم وي، مثال: ضَرَبَ زيدٌ.

اعتراض: تا ووئيل چه جمله اسميه هغه ده چه اولنے جزء به ئې اسم وي او جمله فعليه هغه ده چه اولنے جزء به ئې فعل وي، نو كه چرته دَ كومې جمله اولنے جزء حرف وي نو هغه ته جمله حرفيه اووايه؟

جواب: دَ جزء اول نه مراد خاص هغه جزء دے چه مسند يا مسند اليه واقع كيږي او حرف مسند او مسند اليه نه واقع كيږي نو ځكه ورته جمله حرفيه هم نه وائي.

## وبدانكه مسند حكم است

مصنفؒ اوس دَ مسند او مسند اليه تعريف بيانوي.

## دَمسند اليه تعريف

مسند اليه: هغه اسم ته وائي چه په هغه باندې دَ بل څيز حكم لګيدلے وي، يا مسند اليه هغه اسم ته وائي چه دَ بل څيز دَ حكم نسبت ورته وكړے شي، مثال: زيدٌ عَالِمٌ، زيدٌ صائِمٌ، په دے كښې "زيد" مسند اليه دے.

## دَمسند تعريف

مسند: هغه اسم ته وائي چه دَ دې حكم بل څيز طرف ته وشي، يا مسند هغه اسم ته وائي چه بل څيز طرف ته ئې نسبت وكړے شي، مثال: صَامَ زيدٌ، صَلّٰى زيدٌ، عَلِمَ زيدٌ.

## اسم مسند ومسند اليه إلٰى آخرِه

اوس مصنفؒ دَ اسم، فعل، حرف قابليت بيانوي چه اسم مسند او مسند اليه دواړه واقع كيږي ځكه چه اسم دَ ذات او وصف دواړو دَ پاره راځي، زيدٌ صائِمٌ.

او فعل صرف مسند واقع کيږي، مسند اليه نه واقع کيږي ځکه چه فعل صرف دَ وصف دَ پاره راځي دَ ذات دَ پاره نه راځي، مثال: ضَرَبَ زيدٌ.

او حرف مسند او مسند اليه نه واقع کيږي ځکه چه حرف دَ ذات او وصف دَ پاره نه راځي لکه مِنْ، إلٰى.

فائده: دا خبره په ذهن کښې کيخودل پکار دي چه مرکب مفيد هميشه دَ مسند او مسند اليه نه مرکب کيږي يا جوړيږي، صَامَ زيدٌ.

فائده: دَ اسم، فعل، حرف په کلام کښې دَ واقع کيدو شپږ صورتونه دي.

دواړه به اسمونه وي، لکه زيدٌ عَالِمٌ. دواړه به فعلونه وي، لکه ذَهَبَ، ذَهَبَ، دواړه به حرفونه وي، لکه مِنْ، إلٰى، يا به اسم او فعل وي، لکه زيدٌ ضرَبَ، يا به اسم او حرف وي، لکه زيدٌ مِنْ، يا به فعل او حرف وي، لکه ضَرَبَ مِنْ.

## دَ مرکب مفيد صورتونه

دَ مرکب مفيد دوه صورتونه دي:

(1) چه دواړه اسمونه وي نو يو به مسند او دويم به مسند اليه شي، لکه زيدٌ قائمٌ.

(2) چه يو اسم او دويم فعل وي نو اسم به مسند اليه او فعل به مسند شي، مثال: ذَهَبَ زيدٌ.

## دَ مرکب غير مفيد صورتونه

دَ مرکب غير مفيد څلور صورتونه دي:

(1) چه دواړه حرفونه وي نو کلام به دَ مسند او مسند اليه نه خالي شي

(2) چه اسم او حرف وي نو که اسم مسند اليه شي نو کلام به دَ مسند نه خالي شي، او که اسم مسند شي نو کلام به دَ مسند اليه نه خالي شي.

(3) چه فعل او حرف وي نو کلام به دَ مسند اليه نه خالي شي.

(4) چه دواړه فعلونه وي نو کلام به دَ مسند اليه نه خالي شي.

## بدانکه جمله انشائيه آنست که قائلش را بصدق وکذب صفت نتوان کرد

مصنفؒ دَ جملي دويم قسم چه جمله انشائيه ده دَ هغې تعريف بيانوي.

## دَجمله انشائيه تعريف

جمله انشائيه: هغه جملې ته وائي چه قائل ته ئې دَ رشتيا او دروغو نسبت وؤنکړے شي، ځکه چه دا دَ واقعه خبر نه ورکوي بلکه دَ خپل مخاطب نه دَ يو کار مطالبه کوي که مخاطب هغه کار وکړو نو مونږ به وايو چه خبره پوره شوه، ليکن متکلم ته به صادق نه وايو، او که مخاطب هغه کار وونکړو نو مونږ به وايو چه خبره پوره نه شوه ليکن داسې به نه وايو چه متکلم کاذب دے.

## وآن بر چند قسم است

## دَ جمله انشائيه اقسام

اوس مصنفؒ دَ جمله انشائيه مشهور لس اقسام بيانوي: امر، نهي، استفهام، تمني، ترجي، عقود، ندا، عرض، قسم، تعجب.

اول نمبرقسم امر: په لغت کښې حکم کولو ته وائي. او په اصطلاح کښې امر دا هغه جمله انشائيه ده چه متکلم دَ خپل مخاطب نه دَ يو کارکولو مطالبه وکړي، مثال: اِضْرِبْ.

ترکيب: اِضْرِبْ صيغه واحد مذکر امر حاضر معلوم أَنْتَ ضمير مستتر ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله انشائيه امريه.

دويم نمبر قسم نهي: په لغت کښې منع کولو ته وائي، او په اصطلاح کښې نهي دا هغه جمله انشائيه ده چه متکلم خپل مخاطب دَ کار کولو نه منع کړي. لَا تَضْرِبْ.

ترکيب: لاتَضرِبْ صيغه واحد مذکر فعل نهي حاضر معلوم أنت ضمير مستتر ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله انشائيه نهيه شوه.

دريم نمبر قسم استفهام: په لغت کښې تپوس کولو ته وائي. او په اصطلاح کښې استفهام دا هغه جمله انشائيه ده چه دَ دې په ذريعه سره ناواقفه متکلم دَ واقف مخاطب نه دَ ناواقفه کار يا خبر په باره کښې تپوس وکړي، مثال: هَلْ ضَرَبَ زيدٌ؟

## فائده

فائده: حروف استفهام درې دي: هَلْ، همزه، مَا، او مَا چي کله استفهاميه وي نو دا اسم وي.

فائده: کله نا کله حروف استفهام داسې متکلم استعمال کړي چه هغه دَ دغه څيز نه خبر وي نو په داسې مواقع کښې به ديته استخبار وائي، مثال: قوله تعالى: ﴿هَلْ تَسْتَوِي الظُّلمْت والنُّور﴾

څلورم نمبر قسم تمني: تمني په لغت کښې آرزو ته وائي، يَا لَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرَابًا. او په اصطلاح کښې تمني دا هغه جمله انشائيه ده چه دَ دي په ذريعه

سره متکلم دَ خپلې آرزو اظهار وکړي، لَيْتَ زَيْدًا حَاضِرٌ.

فائده: حروف تمني درې دي: (1) لَيْتَ، (2) لَوْ، (3) لَوْلَا.

ترکیب: لَيْتَ حرف اَز حروف مشبّه بالفعل "زيدًا" ئې اسم او "حاضرٌ" ئې خبر، ليت سره دَ خپل اسم او خبر نه جمله انشائيه تمنيّه شوه.

پنځم نمبر قسم ترجي: ترجي په لغت کښې امید ته وائي، او په اصطلاح کښې ترجي دا هغه جمله انشائيه ده چه دَ دي په ذریعه سره متکلم دَ خپل امید اظهار وکړي، لَعَلَّ عَمْرًوا غَائِبٌ.

ترکیب: لَعَلَّ حرف از حروف مشبه بالفعل "عمروًا" ئې اسم "غائبٌ" ئې خبر، لعل سره دَ خپل اسم او خبر نه جمله انشائيه ترجيه شوه.

فائده: تمني او ترجي کښې درې فرقه دي.

الفرق الأول: دَ تمني استعمال په ممکن او ناممکن دواړو کارونو کښې کیږي او ترجي صرف په ممکن کښې استعمالیږي په ناممکن کښې نه استعمالیږي.

لهذا لَيت الشَّبابُ يعودُ يومًا او ليت زيدًا حاضرٌ وئيل درست دي، ليکن لعلَّ الشاب يعودُ يومًا وئيل درست ندي ځکه چه دا ممکن ندي.

الفرق الثاني: دَ تمني استعمال صرف په پسنديده کارونو کښې کیږي او دَ ترجي استعمال په پسنديده او غير پسنديده دواړو کښې کیږي.

لهذا لعَلَّ السُّلْطَانَ يَقتُلنِيْ وئيل درست دي او ليت السُّلطان يَقْتُلنِي وئيل درست ندي ځکه چه دا ناپسنديده دي.

الفرق الثالث: دَ يو څيز حاصليدلو دَ پاره تمام اسباب استعمالول او قوت لګول او بيا دَ دغه څيز دَ حصول دَ پاره کيناستل ديته ترجي يعني امید وائي، او بغير دَ کوشش نه دَ يو څيز په حصول کښې کيناستل ديته تمني يعني آرزو وائي.

يقول الشاعر:

فَيَالَيْتَ الشَّبَابَ يَعُوْدُ يَوْمًا          فَأُخْبِرَهُ بِمَا فَعَلَ الْمَشِيْبُ

شپږم نمبر قسم عقود: عقود دَ عقد جمع ده په لغت کښې "گره باندھنا" ته وائي (غوټه ورکول) او په اصطلاح کښې دا هغه جمله انشائيه ده چه دوه کسان دَ هغې په ذريعے سره څه معامله اوکړي لکه اغستل خرڅول، نکاح، اجاره، عارية وغيره. بِعْتُ ما خرس کړه، اشْتَرَيْتُ ما واغسته.

فائده: کچرته بِعْتُ او اِشتَرَيتُ دَ معامله په وخت استعمال شو نو بيا به جمله انشائيه وي او کۀ معامله شوے وه او بيا استعمال شو نو بيا ورته خبر وائي، او کۀ معامله بالکل شوې نه وي بيا استعمال کړے شي نو بيا ورته وعده وائي.

ترکيب: بعتُ صيغه واحد متکلم فعل ماضي معلوم "تُ" ضمير بارز ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله انشائيه عقوديه شوه. دَ اشتريتُ ترکيب هم دغسه دے، په خپله ئې وکړه.

اووم نمبر قسم ندا: ندا په لغت کښې آواز کولو ته وائي، او په اصطلاح کښې دا هغه جمله انشائيه ده چه دَ حرف نِدا په ذريعه سره متکلم مخاطب خپل طرف ته متوجه کړي.

مثال: يَا اللهُ، يَا رجل، يا زيد، يا عبدَ الله.

ترکيب: يَا الله، يَا حرف نِدا قائم مقام "أَدْعُوْ" اَدْعُوْ صيغه واحد متکلم فعل مضارع معلوم "أَنَا" ضمير مستتر ئې فاعل او لفظِ "الله" اسم جلاله مُنادٰی ئې مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل، مفعول به نه جمله انشائيه ندايه شوه.

فائده: حروف نِدا پنځه دي: يَا، أَيَا، هَيَا، أَيْ، هَمزه مَفتوحه.

فائده: چرته چه حرف نِدا وي هلته به څلور څيزونه وي: (1) مُنَادِي، (2) مُنَادٰی،

(3) حرفِ ندا، (4) جوابِ ندا يا مقصود بالنداء، "يا الله اغفرلنا" يا حرفِ ندا ده او لفظِ "الله" اسم جلاله منادیٰ او "اغفرلنا" جوابِ ندا ده او متكلم مُنادِي دے.

اتم نمبر قسم عرض: عرض په لغت کښې پيش کولو ته وائي، او په اصطلاح کښې دا هغه جمله انشائيه ده چه متكلم خپل مخاطب ته په نرمۍ سره ترغيب ورکړي.

مثال: أَلَا تَنْزِلْ بِنَا فَتُصِيْبُ خَيْرًا.

تركيب: "أَلَا" حرف عرض "تنزل" صيغه واحد مذكر مخاطب فعل مضارع معلوم "أنت" ضمير مستتر واجب الاستتار ئې فاعل، "بنا" ب حرف جر "نا" مجرور، جار سره دَ مجرور نه متعلق شو په "تنزل" فعل پورې، فعل سره دَ خپل فاعل او متعلق نه عرض شو، "فتصيب خيرًا" ف جوابيه "تصيب" صيغه واحد مذكر مخاطب فعل مضارع معلوم "أنت" ضمير مستتر ئې فاعل "خيرًا" ئې مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به نه دا جواب عرض، عرض سره دَ جواب عرض نه جمله انشائيه عرضيه شوه.

او يا په تاويل دَ "ألا يكونُ نزولٌ مِنْكَ، فيكون إصابة خيرٍ مِنِّي" "ألا" حرفِ تنبيه "يكون" فعل ناقص "نزولٌ" ئې اسم او "منک" جار مجرور ئې خبر دا په جملې جوړيدو سره معطوفة عليها، "ف" عاطفه "يكون" فعل "إصابة" مضاف "خير" مضاف اليه، مضاف اليه سره دَ مضاف نه اسم دَ "يكون" او "منّي" جار مجرور ورله خبر، يكون سره دَ اسم او خبر نه معطوفه، معطوفة عليها سره دَ معطوفه نه جمله معطوفه.

نهم نمبر قسم قَسَم: قسم په اصطلاح کښې دا هغه جمله انشائيه ده چه متكلم دَ دې په ذريعه سره په يوه خبره قسم وخوري يا يو خبره مضبوطه

کړي. مثال: واللهِ لَأَضْرِبَنَّ زيدًا.

ترکیب: واؤ حرف جر لفظ الله اسم جلاله ئی مجرور، جار سره دَ مجرور نه متعلق شو په فعل محذوف پورې چه "أُقْسِمُ" دے، أُقْسِمُ صيغه واحد متکلم فعل مضارع معلوم "أنا" ضمير مستتر ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه په جمله جوړېدو سره قَسَم شو، "لأَضْرِبَنَّ زيدًا" صيغه واحد متكلم فعل مستقبل معلوم مؤكد بنون تاکيد ثقيله "أنا" ضمير مستتر ئې فاعل، زيداً ئې مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به نه جمله فعليه کېدو سره جواب قَسَم، قسم سره دَ جوابِ قسم نه جمله انشائيه قسميّه.

فائده: په جمله قسميّه کښې څلور څیزونه وي: حرف قسم، مُقْسَمْ بِه، مُقْسِمْ، جواب قسم مثال: وَاللهِ لَأَضْرِبَنَّ زَيْدًا (1) واؤ حرف قسم، (2) لفظ الله اسم جلاله، مُقْسِم به، او متکلم ته مُقْسِم وائي، (3) والله قسم، (4) لَأَضْرِبَنَّ زَيْدًا جوابِ قسم.

فائده: قسم راځي دَ تاکيد او شک ختمولو لپاره.

فائده: حروفِ قسم درې دي، (1) واؤ، (2) با، (3) تا

لسم نمبر قسم تعجب: تعجب دَ عُجب نه دے په معنٰی دَ حيرانتيا سره. او په اصطلاح کښې دا هغه جمله انشائيه ده چه متکلم دَ دي په ذريعه سره په ناشنا څيز باندې دَ حيرانتيا اظهار وکړي، مثال: مَا أَحْسَنَ زيداً، وأَحْسِنْ بِزيدٍ

دا ترکیب دَ امام فرّاء عليه الرحمة په نزد دے: "مَا أحسَنَ زيداً" کښې لفظ "ما" استفهاميه په معنٰی دَ "أيُّ شيءٍ" أيّ مضاف شيءٍ مضاف اليه، مضاف سره دَ مضاف اليه مبتداء أحْسَن صيغه واحد مذکر غائب فعل ماضي معلوم، ب زائده، زيدٍ ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله انشائيه تعجبيه

فائده: دَ فعل تعجب دوه صيغې دي: (1) مَا أَفْعَلَه، (2) وَأَفْعِلْ بِه.

فائده: دَ "مَا أَفْعَلَه" په لفظ "ما" کښې درې قولونه دي:

① دَ امام فرّاءعلیه الرحمہ په نزد مَا په معنیٰ دَ "أَيُّ شَيْءٍ".

② دَ امام سيبويه‌علیه الرحمہ په نزد مَا په معنیٰ دَ "شَيْءٌ عظِيْمٌ".

③ دَ امام اخفش‌علیه الرحمہ په نزد مَا په معنیٰ دَ "الَّذِيْ".

## دَ جمله انشائيه خارجي اقسام

دَ جمله انشائيه خارجي اقسام: (1) افعال مدح هم دَ جملې انشائيه اقسام دي او دا دوه دي مثال: نِعْمَ، حَبَّذَا.

(2) افعال ذم هم دَ جملې انشائيه اقسام دي او دا دوه دي، مثال: بِئْسَ، سَاءَ.

(3) جمله دعائيه هم دَ انشائيه قسم دے جزاك الله خيرًا.

(4) جمله بدعائيه هم دَ انشائيه قسم دے لا جزاك الله خيرًا.

اختلاف: اكثر علماء (1) افعال مقاربه، (2) افعال مدح، (3) افعال ذم دَ جملې انشائيه اقسام حسابوي، البته بعض علماء ئې دَ جملې خبريه نه حسابوي.

فائده: په حقيقت کښې جمله په دوه قسمه ده: (1) ذاتي، (2) وصفي

دَ ذاتي اقسام: (1) اسميه، (2) فعليه، (3) شرطيه، (4) ظرفيه.

دې څلورو واړو ته اصل جمله وائي.

جمله اسميه مثال: زَيْدٌ قائِمٌ.

جمله فعليه مثال: ضَرَبَ زيدٌ.

جمله شرطيه مثال: إن تُكْرِمْنِي أُكْرِمْك.

جمله ظرفيه مثال: عندي مالٌ.

دَ جمله وصفي اقسام: (1) معطوفه، (2) مُبَيِّنَه، (3) مَقْطُوعَه، (4) مُعْتَرِضَة،

(5) مُعَلَّله، (6) مُسْتَانِفَه، (7) اِبتدائيَّه، (8) نتِيجِيَّه، (9) حَاليَّه.

## تمرين(1)

حَضَرَ مَحْمُوْدٌ، إِجْلِسْ، لَا تَكْذِبْ، أَزَيْدٌ قَائِمٌ، لَيْتَ بَكْرًا حَاضِرٌ، لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيْبٌ، مَا أَشْرَفَ زَيْدًا، وَاللّٰهِ لَأَصِلَنَّ خَالِدًا، أَلَا تَقْدَمُنَا فَتُصِيْب خَيْرًا، إِمْدَحْ، يَسْتَيْقِظُ الطِّفْلُ، تُغَرِّدُ الطُّيُوْرُ، لَاتَجْرَحْ، لَيْتَ أَخَا عَمْروٍ حَاضِرٌ، هَلْ وَعَدَ خَالِدٌ، يَارَجُلُ، لَعَلَّ سَعِيْدًا غَائِبٌ، تَاللّٰهِ لَأَضْرِبَنَّ زَيْدًا، أَسْمِعْ بِه وَأَبْصِرْ، فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ، يَاعَبْدَ اللّٰهِ، نَكَحْتُ، رَضِيَ اللّٰهُ، نِعْمَ الْعَبْدُ أَيُّوْب، بِئْسَ الْمِهَادُ جَهَنَّمُ.

## فصل بدانكه غير مفيد آنست إلىٰ آخره

## د مركب غير مفيد تعريف

چه متكلم خبره وكړي او خاموش شي او سامع ته خبر يا طلب معلوم نه شي

مثال: غُلَامُ زَيْدٍ.

## د مركب غير مفيد اقسام

مركب غير مفيد په دوه قسمه دے: (1) تقييدي، (2) غير تقييدي.

## مركب تقييدي

دَ مركب تقييدي تعريف: چه دَ هغې دويم جزء دَ اولني جزء دَ پاره قيد وي.

مركب تقييدي په دوه قسمه باندې دے: (1) مركب اضافي او (2) مركب

توصیفي.

دَ مرکب اضافي تعریف: چه دَ یو څیز تعلق بیانول مقصود وي، دَ بل څیز سره یا چه دَ مضاف مضاف الیه نه جوړ وي، غُلامُ زَیدٍ.

فائده1: چه َکوم څیز تعلق بیانول مقصود وي هغه ته مضاف وائي، او چه دَکوم څیز سره ئې بیانوي هغه ته مضاف الیه وائي.

فائده2: په عربۍ کښ به اول مضاف وي بیا به مضاف الیه وي، او په اردو کښ به اول دَ مضاف الیه او بیا به دَ مضاف ترجمه کیږي او کا ،کے، کي به ئې په درمیان کښ راځي، دې به ئې پښتو ترجمه کښ راځي مثال: غُلامُ زیدٍ دَ زید غلام.

فائده3: دَ مرکب اولنۍ جزء ته مضاف او دویم جزء ته مضاف الیه وائي، او مضاف الیه به همیشه دَ پاره مجرور وي. کُلُّ مُضَافٍ إِلَیْهِ مَجْرُوْرٌ.

دَ مضاف مشهور اور آسان علامات: (1) چه دوه اسمونه وي په اولني اسم باندې الف لام نه وي او په دویم اسم باندې الف لام وي نو عام طور باندې دا مضاف، مضاف الیه وي په دې شرط سره چه اولنۍ اسم دَ چا نوم نه وي او اسم اشاره او ضمیر نه وي.

مثال: رَبُّ الْعَالمین، کِتَابُ الصَّلوٰۃ، رِیَاضُ الصَّالِحِیْنَ.

(2) چه دَ کوم اسم نه بعد ضمیر راشي نو مضاف او مضاف الیه به وي، مثال: عَلٰی قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰی سَمْعِهِمْ، صلٰوتهم، رَبُّکُمْ.

## دَ مرکب تقییدي دویم قسم مرکب توصیفي

دَ مرکب توصیفي تعریف: چه دَ هغه اولنے جزء موصوف او دویم جزء صفت وي، مثال: رَجُلٌ عَالِمٌ، رَجُلٌ نَائِمٌ.

فائده1: په دې کښ رَجُلٌ موصوف او عَالِمٌ ئې صفت دے.

**فائده2**: دَ صفت تعريف: صفت هغه تابع ته وائي چه دَ موصوف يا دَ موصوف دَ متعلق ښه يا بد حال بيان کړي.

**فائده3**: دَ تعريف نه معلومه شوه چه صفت په دوه قسمه دے: (1) صفت بحاله، (2) صفت بحال متعلقه.

**صفت بحاله**: چه دَ خپل موصوف حال بيان کړي لکه الصراط المستقيم.

**صفت بحال متعلقه**: چه دَ خپل موصوف حال بيان نه کړي، بلکه دَ هغې دَ متعلق حالت بيان کړي جَاءَنِيْ رَجُلٌ حَسَنٌ غُلَامُه يا جَاءَنِيْ رَجُلٌ أَبُوْه عَالِمٌ.

**دَ موصوف تعريف**: موصوف هغې ته وائي چه دَ هغه ښه صفت بيان کړے شي، مثال: بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ يا بد صفت بيان کړے شي، مثال: أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ.

**فائده4**: صفت بحاله به دَ خپل موصوف سره په لس ځيزونو کښ مطابق وي، ليکن په يو وخت کښ به پکښ ځلور موجود وي.

هغه لس ځيزونه دا دي: (1) معرفه، (2) نکره، (3) مذکر، (4) مؤنث، (5) مفرد، (6) تثنيه، (7) جمع، (8) رفع، (9) نصب، (10) جر.

مثال: إِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ.

**نوټ**: صفت به په اعراب کښ دَ خپل موصوف سره يو شانتې وي.

صفت بحال متعلقه به دَ خپل موصوف سره په پنځه ځيزونو کښ مطابق وي ليکن په يو وخت کښ به پکښ دوه ضروري وي: (1) معرفه، (2) نکره، (3) رفع، (4) نصب، (5) جر

مثال: مِنْ هذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا.

**دَ مرکب توصيفي حکم**: دَ دي دواړو جُزونه به دَ مفرد کلمې پشان وي، کۀ چرته ئې عامل رافع وو نو دا دواړه به هم مرفوع وي، لکه جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ که چرته ئې عامل ناصب وو نو دا دواړه به هم منصوب وي،لکه رَأَيْتُ رَجُلًا

عَالِمًا، که چرته ئې عامل جار وو نو دا دواړه به هم مجرور وي، لکه مَرَرْتُ بِرَجُلٍ عَالِمٍ.

## دَ مرکب غير تقييدي تعريف او اقسام

دَ مرکب غير تقييدي تعريف: چه دويم جزء يې دَ اولني جزء دَ پاره قيد نه وي.

مرکب غير تقييدي په درې قسمه دے: **(1)** مرکب بنائي، **(2)** مرکب منع صرف، **(3)** مرکب صوتي.

دَ مرکب بنائي تعريف: چه دوه اسمونه ملاؤ کړې او يو ترينه جوړ کړې او دويم اسم ئې يو حرف ته متضمن وي يعني دَ دويم جزء نه مخکښ دَ واؤ معنٰى په ذهن کښ راځي.

مثال: أَحَدَ عَشَرَ نه تر تِسْعَةَ عَشَرَ، او أَحَدَ عَشَرَ په أصل کښ أَحَدٌ وَّعَشَرٌ وو نو دَ لفظونو نه ئې واؤ حذف کړو ليکن معنٰى ئې په ذهن کښ راځي.

دَ مرکب بنائي حکم: فائده1: دَ مرکب بنائي دواړه جُزونه به مبني بَر فتحه وي سواء دَ "اثْنَا عَشَرَ" نه چه دَ دي اولنے جزء معرب دے او دويم جزء به ئې مبني برفتحه وي، ځکه چه دا په اصل کښ "اثنان" وو او دَ "اثنان" نون مشابه دَ نون دَ تثنيه سره دے، او نون دَ تثنيه په وخت دَ اضافت سره حذف کيږي نو دَ مشابهت دَ وجه نه دا نون هم حذف کيږي.

سوال: دَ مرکب بنائي دواړه جزونه ولې مبني بَر فتحه دي؟

جواب: دَ مرکب بنائي اولنے جزء ځکه مبني دي چه دَ هغه آخري حرف په درميان کښ راغلے، او اعراب په آخر کښ جاري کيږي په درميان کښ نه جاري کيږي، او دويم جزء ئې ځکه مبني بَرفتحه دے چه هغه يو حرف ته متضمن دے او حروف ټول مبني دي، لهذا دا هم مبني شو دَ مشابهت دَ

وجه نه.

سوال: چه مرکب بنائي ئې مبني بَر فتحه ولې کړو؟

جواب: فتحه أخَفُّ الحرکات دے یعني خفیف حرکت دے تلفظ پرې آسان کیږي.

دَ مرکب منع صرف تعریف: مرکب منع صرف هغه مرکب دے چه دوه اسمونو ملاؤ کړي یو ترینه جوړ کړے شي او دویم جزء ئې حرف ته متضمن نه وي، مثال: بَعْلَبَكُّ.

دا په اصل کښې دوه کلمے وی، یوه "بَعْلَ" چه دَ یو بُت نوم وو چه دَ الیاس علیه السلام قوم به ئې عبادت کولو، او بَل "بَكَّ" چه دَ یو ښار دَ جوړاونکي بادشاه نوم وو، دا دواړه ئې یو ځائے کړل، یو ښار لره ئې نوم کیخودو.

دَ مرکب منع صرف حکم: دَ اکثر علماء کرامو رائے دا ده چه د اولني جزء په آخر کښې ئې واؤ یا یاء راغلے وي نو هغه به مبني برسکون وي لکه قاضي خان، کالو خان، او که دا نه وو نو بیا به مبني برفتحه وي (والله اعلم) او دویم جزء ئې معرب غیر منصرف دے چه کله به پری ضمه او کله فتحه بِلا تنوین راځي یعني کسره او تنوین به پرې نه راځي.

مثالونه: جَاءَنِيْ بَعْلَبَكُّ، رَأَيْتُ بَعْلَبَكَّ، مَرَرْتُ بِبَعْلَبَّكَ.

او بعض علماء کرام فرمائي چه اولنے جزء ئې معرب منصرف دے ځکه چه دا مضاف دے او دَ دویم جزء باره کښې ئې بعض حضرات فرمائي چه منصرف دے او بعض حضرات فرمائي چه غیر منصرف دے. ( زاد الفقیر صفحه 106)

## دَ مرکب غیر تقییدي دریم قسم مرکب صوتي

دَ مرکب صوتي تعریف: مرکب صوتي هغه مرکب دے چه دوه اسمونه

ملاؤ کړي او يو ترينه جوړ کړي او دا دويمه کلمه پکښې اسم صوت وي.
مثال: سِيْبَوَيْه چه اصل کښې سِيْبَ او وَيْه وو، او دا دَ عَمْرو بن عُثْمان شيرازي لقب دے چه دَ علم النحو جليل القدر امام دے.
دَ مرکب صوتي حکم: اولنے جزء به ئې مبني بَر فتحه او دويم جزء به ئې مبني بَر کسره وي، مثال: هٰذَا كِتَابُ سِيْبَوَيْه.

## بدانکه مرکب غير مفيد هميشه جز وجمله باشد چون

غُلامُ زيدٍ قائمٌ، عِنْدِيْ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا، جَاءَ بَعْلَبَكُّ

مصنف عليه الرحمه په دے عبارت سره دَ مرکب غير مفيد حيثيت بيانوي او دَ يو اعتراض جواب ورکوي.
اعتراض: چه دَ مرکب غير مفيد فائده نشته، پوره جمله نه واقع کيږي، يا مسند يا مسند اليه واقع کيږي نو په کلام کښې ئې ولې ذکر کوي؟
جواب: مرکب غير مفيد اګرچه پوره جمله نه واقع کيږي، ليکن دَ جملے يو جزء واقع کيږي، کله فاعل، کله مبتداء، کله خبر، لهذا مرکب غير مفيد فائده ورکوي نو ځکه مصنف عليه الرحمه ذکر کړو، په غُلَامُ زيدٍ قَائِمٌ کښې غُلام زيدٍ مرکب غير مفيد دے او مسند اليه واقع شوے، او په عِنْدِيْ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا کښې أحَدَ عَشَرَ غير مفيد دے او دَ جملے جزء واقع شوے دي،چه مبتداء مؤخره ده او په جَاءَ بَعْلَبَكُّ کښې بَعْلَبَكُّ مرکب غير مفيد دے او دَ جملے جزء واقع شوے دي چې فاعل دے.
خلاصه: لهذا مرکب غير مفيد اګرچه د جملي يو جزء واقع کيږي ليکن فائده ورکوي نو مصنف عليه الرحمه ځکه ذکر کړه.
ترکيب: غُلامُ زيدٍ قائمٌ:غُلَامُ مضاف زَيْدٍ مضاف اليه، مضاف سره دَ مضاف اليه نه مبتداء، قائمٌ ئې خبر، مبتداء سره دَ خبر نه جمله اسميه

خبريه.

عندي أحد عشر درهمًا: عند مضاف ي ضمير دَ متكلم مضاف اليه، مضاف سره دَ مضاف اليه نه مفعول فيه شو دَپاره دَ ثَبَتَ فعل مقدّره، ثَبَتَ فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول فيه نه جمله فعليه خبريه، دا خبر مقدم أحد عشر مركب بنائي مميّز درهمًا ترينه تميز، مميز سره دَ تميز نه دا مبتداء مؤخر، خبر مقدم سره دَ مبتداء مؤخر نه دا جمله اسميه خبريه.

جَاءَبَعْلَبَكُّ: جاء فعل بَعْلَبَكُّ ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعليه خبريه.

## فصل بدانکه هیچ کلمه کمتر از دو کلمه نباشد لفظًا چون...

## هيڅ يوه جمله به دَ دوو کلمو نه کمه نوي

دلته مصنف عليه الرحمه دوه خبرې ذکر کوي، اوله خبره: چه په جمله کښې به کم از کم دوه کلمې وي، ځکه چه په جمله کښې مسند او مسند اليه ضروري وي.

دويمه خبره: دا دوه کلمې به يا لفظًا وی مثال: ضَرَبَ زَيْدٌ، زَيْدٌ قَائِمٌ، او يا به تقديراً وی، مثال: إِضْرِبْ چه په دي کښې يوه کلمه اضرب ده او دويمه کلمه اَنْتَ ضمير مستتر ده.

واذيں بشتر باشد: او کله به په مرکب مفيد کښې ددوه کلمونو نه زائد هم وي او دَ زائد دَ پاره څه حد مقدر نه دے، مثال: ضَرَبَ زَيْدٌ عمروًا فِي دَارِهِ.

## بدانکه چون کلمات جمله بسيار باشد إلىٰ آخره

## دَ مطالعه طريقه

په دې عبارت سره مصنفﷺ په کلام عربي کي دَ ترکيب او دَ مطالعه طريقه بيانوي، نو فرمائي چه کله په جمله کښې ډير الفاظ وي نو څلور خبرې به ضروري وي.

الأول: دا معلومول چه کومه کلمه اسم،فعل،حرف دے او کوم يو مفرد او کوم يو مرکب دے.

الثاني: دا معلومول پکار وي چه معرب او مبني پکښې کوم يو دے.

الثالث: دا معلومول پکار دي چه عامل او معمول پکښې کوم يو دے.

الرابع: دَ کلماتو په خپل مينځ کښې تعلق وپيژندلے شي چه فعل او فاعل دي، او که مبتداء او خبر دي، او که موصوف او صفت دي، او که مضاف او مضاف اليه دي، نو چه په دې طريقه باندې مطالعه وشي نو دَ جملې معنىٰ به په ښه طريقه سره معلومه شي.

## تمرين(2)

ترجمه وکړي او لاندينې الفاظو کښې د مرکب غير مفيد قسمونه بيان کړي او کم يو مرکب غير مفيد د جملې جزء جوړيګي-

مُعَلِّمُ الْمَدْرَسَةِ، التِّلْمِيْذُ الْمُجْتَهِدُ، أَرْبَعَةَ عَشَرَ، لَحْمٌ طَرِيٌّ، جَاءَ حَضَرَ مَوْتُ، رَأَيْتُ بَعْلَبَكَّ، غُرْفَةٌ حَامِدٍ، خَمْسَةَ عَشَرَ، خَاتَمُ الفِضَّةِ جَدِيْدٌ، الرَّجُلَانِ الْعَالِمَانِ صَالِحَانِ، خَالِقُنَا اللّٰهُ، رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا، الْقُرْآنُ كِتَابُ اللّٰهِ، مُحَمَّدٌ رَّسُوْلٌ صَادِقٌ، لِزَيْدٍ خَمْسَةَ عَشَرَ خَادِمًا، مَالِكُنَا اللّٰهُ، التِّلْمِيْذُ الْمُجْتَهِدُ مَحْبُوْبٌ، إِخْلَوْلَقَ ثَوْبُ عَمرٍو، الشَّيْءُ الْبَارِدُ، سَوْقٌ كَبِيْرٌ،

وَلَدٌ ذَكِيٌّ، إِنْفِطَارُ النَّارِ، إِنْشِقَاقُ القَمَرِ، إِبْيَضَّ وَجْهُ رَشِيْدٍ، إِنْشِرَاحُ الصَّدْرِ، فِي الْبَلْدَةِ تِسْعَةَ عَشَرَ مَسْجِدًا، إِشْتِدَادُ الْحَرِّ، فِي الصَّنْدُوْقِ أَرْبَعَةَ عَشَرَ كِتَابًا

## فصل بدانكه علامات اسم آنست

مصنفؒ په ماقبل فصل کښ ذکر کړل چه اسم،فعل، حرف دَ يوبل نه جدا کړي، او جدا کول دَ شيء په علامت دَ شيء سره کيږي (طالب العلم په ذهن کښ راغلل چه دا به څه کيږي) نو مصنفؒ فرمائي خفه کيږه مه علامات درته ذکر کوم.

فائده1: چه څومره څيزونه الله تعالى په دنيا کښ پيدا کړي دي نو هغه ټول په ټوله په خپل خصوصياتو سره دَ يو بل نه جدا دي، مثال: انسان په خپل خصوصيت او خر، ميښه وغيره په خپل خپل خصوصياتو سره پيژندلے کيږي، هم دغسے دَ کلماتو څه علامات دي چه دَ هغې په وجه سره پيژندلے شي چه دا اسم، فعل، حرف دے.

فائده2: دغه کلماتو کښ بعض علامات معنوي او بعض ظاهري او لفظي دي.

دَ علامت لغوي معني ده نشاني.

په اصطلاح کښ علامت ته خاصه هم وائي او دَ خاصه تعريف دے "مَا يُوْجَدُ فِيْهِ وَلَا يُوْجَدُ فِي غَيْرِهِ" ترجمه: خاصه هغه شيء دے چه په دي يو څيز کښ موجود وي او دَ دي نه په غير کښ موجود نه وي، يعني دَ اسم خاصه به په فعل او حرف کښ نه وي، او دَ حرف او دَ فعل خاصه به په اسم کښ نه وي.

## علامات اسم

علامتونه دَ اسم مشهور يولس دي چه دے شعرونو کښې جمع دي.

لام تَنْوِين حَرْفِ جَرْ مُنْسُوب إليه منسوب دان
پس مُصَغَّرْ، تثنيه، مَجمُوع، مضاف رابخوان
نيز اتصال تائے متحركه موصوف علامت اسم دان
نظم كردم آنچه ديدم در كتاب نحويان

اسم چونكه مسند او مسند اليه دواړه واقع كيږي، مثال زَيْدٌ قَائِمٌ يعني دَ جملے دواړه ركنونه جوړيږي نو په دي وجه باندے اسم دَ فعل او حرف نه اشرف او اكرم دے ځكه مصنف‎ﷺ دَ دے علامات او خواص اول ذكر كوي، اول اجمالاً.

لفظي علامات: الف لام، حرف جر، تنوين، مصغّر، منسوب، مُثَنّى، مجموع، تاء متحركه،

معنوي علامات: مسند اليه، مضاف، موصوف دا ټول يولس شو.

## دَاسم د علاماتو تفصيل

1) دَ كومے كلمے په ابتداء كښې چه الف لام راشي هغه به اسم وي ځكه چه په فعل او حرف باندې الف لام نه داخليږي، مثال اَلْحَمْدُ.

2) چه دَ كومے كلمے په ابتداء كښې حرف جر راشي نو هغه به اسم وي، مثال: بِزَيْدٍ.

او حروف جاره ټول اوولس دي چه په دے شعر كښې مذكور دي

با وتا وكاف ولام واؤ ومُنْذ ومُذخَلا
رُبَّ حَاشَا مِنْ عَدا فِي عَن عَلىٰ حَتّٰى إِلىٰ

دا حروف اسم ته جَر ورکوي او دې حروفو ته حروف جاره وائي او کوم اسم ته چه جَر ورکړې هغه ته مجرور وائي، مثال: بِزَيْدٍ کښې ب حرف جر او زَيْدٍ مجرور دے.

3) تنوين علامت دَ اسم دے، مثال: زَيدٌ.

دَ تنوين تعريف: نون ساكنة تتبع حركة آخر الكلمة.

تنوين هغه نون ساکن ته وائي چه دَ کلمے په آخر کښې وئيلې کيږي او ليکلې کيږي نه. او ظاهر کيږي په صورت دَ دوو ضمو او فتحو او کسرو کښې، مثال: زَيْدٌ زَيْدُنْ، زَيْدًا زَيْدَنْ، زَيْدٍ زَيْدِنْ

لهذا چه په کومه کلمه تنوين راشي هغه به اسم وي فعل او حرف به نه وي

تنوين په پنځه قسمه دے:

(1) تنوين تَمَكُّن، (2) تنوين عِوض، (3) تنوين مقابله، (4) تنوين تنکير، (5) تنوين ترنُّم.

تفصيل به ئې دَ کتاب په آخر کښې ان شاء الله راشي.

4) څلورم نمبر علامت مسند اليه علامه دَ اسم ده او مسند علامه دَ اسم نه ده، او مسند اليه ځکه علامه دَ اسم ده چه دا په ذات باندې دلالت کوي او په ذات باندې صرف اسم دلالت کوي او فعل صرف په وصف باندې دلالت کوي او حرف صرف په ربط دلالت کوي په ذات او وصف دلالت نه کوي.

مثال: زَيْدٌ قَائِمٌ، زَيْدٌ صَائِمٌ، زَيْدٌ ذَهَبَ.

اعتراض: چه مصنف عليه السلام دَ اسم په علاماتو کښې مسنداليه ذکر کړه او مسند ئې ذکر نه کړو، حالانکه اسم مسند او مسند اليه دواړه واقع کيږي؟

جواب: مصنف عليه السلام دَ اسم په علاماتو کښې مسند ځکه ذکر نه کړو چه فعل مسند واقع کيږي.

5) پنځم علامت مضاف: مضاف علامت دَ اسم دے او مضاف الیه علامت دَ اسم نه دے او مضاف ځکه علامت دَ اسم دے چه فوائد دَ اضافت درې دي، تعریف، تخصیص، تخفیف، نو دا درې واړه خاص دي دَ اسم سره، نو مضاف هم خاص شو دَ اسم سره، مثال: غُلَامُ زیدٍ.

فائده: بعض حضراتو مضاف او مضاف الیه دواړه علامت دَ اسم ګرځولي دي او دیته ډیر زیات درست وئیلې شوې دي، لیکن مصنف رحمه الله دویم مذهب اختیار کړو چه صرف مضاف علامت دَ اسم دے او مضاف الیه علامت دَ اسم نه دے ځکه چه فعل کله نا کله مضاف الیه واقع کیږي، لکه یَوْمَ یُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ.

6) شپږم نمبر علامت: دَ اسم مصَغّر دے، معنٰی ئې ده ورکوټے کړے شوے، مصغّر هغه اسم دے چه په هغه کښې تصغیر کړے شوے وي او تصغیر دَ صرفیانو په اصطلاح کښې په لفظ کښې داسې تبدیلې کولو ته وائي چه دَ چا په حقَارت، قلّت، عظمت، محبّت باندې دلالت وکړي. مثال دَ حقارت: رَجُل نه رُجَیْلٌ، مثال دَ عظمت: قَرْشٌ نه قُرَیْشٌ، مثال دَ محبت: اِبْنٌ نه بُنَيٌّ.

فائده: دَ تصغیر پیژندل اولنے حرف به ئې مضموم، دویم حرف به ئې مفتوح او په دریم ځائے به ئې یاء ساکنه وي، لکه رُجَیْلٌ.

فائده: تصغیر که دَ رباعي نه وو نو دَ فُعَیْلِلٌ په وزن به وي، مثال: جَعْفَرٌ نه جُعَیْفِرٌ، او دَ ثلاثي مجرد نه به دَ فُعَیْلٌ په وزن وي، لکه دَ رَجُلٌ نه رُجَیْلٌ.

فائده: تصغیر ځکه علامت دَ اسم دے چه دا په تحقیر باندې دلالت کوي او تحقیر خاص دے دَ اسم سره فعل او حرف دَ تحقیر قابل نه دے.

7) اووم نمبر علامت منسوب: منسوب دَ اسم مفعول صیغه ده په

معنٰی دَ نسبت کړے شوے، مثال بغدادِيٌّ، بغداد والا، او یاء نسبتیه همیشه دَ پاره دَ کلمے په آخیر کښې لاحق کیږي او په ما قبل ئې کسره وي، لهذا یاء نسبتیه همیشه دَ اسم په آخر کښې راځي په فعل او حرف کښې نه وي.

سوال: یاء نسبتي دَ اسم علامت ولې ده؟

جواب1: چه کله یاء نسبتي په اسم پسې متصله شي نو ماقبل کسره غواړي او کسره دَ جر خُور ده او جَر خاص دے دَ اسم سره نو دا هم خاص شو دَ اسم سره.

جواب2: منسوب ځکه علامه دَ اسم ده چې نسبت دَ یو ذات کیږي محل ته، او ذات اسم وي.

**8،9)** اتم او نهم نمبر تثنیه او جمع: دا دواړه علامات دَ اسم دي، مثالونه: رَجُلَانِ، رِجَالٌ.

تثنیه او جمع ځکه علامات دَ اسم دي چه تثنیه او جمع دواړه دلالت کوي په تعدّد باندې او تعدّد په اسم کښې وي په فعل او حرف کښې تعدّد نه وي.

اعتراض: چه تا تثنیه او جمع په علاماتو دَ اسم کښې شمار کړه، حالانکه په فعل کښې هم تثنیه او جمع شته، یا په فعل کښې هم تعدّد شته، مثال: ضَرَبَا، ضَرَبُوا.

جواب: په فعل کښې تعدد نشته کوم چه په نظر راځي نو دا دَ فعل په آخره کښې دَ تثنیه او جمع ضمائر لګیدلي دي او ضمائر اسماء وي افعال نه وي، لهذا فعل همیشه لپاره مفرد وي، په ضَرَبَا کښې الف او په ضَرَبُوا کښې واؤ ضمائر بارزه دي، چه دا دواړه ئې فاعلان دي او فاعل اسم وي.

**10)** لسم علامت موصوف باشد: رَجُلٌ عَالِمٌ.

موصوف ځکه علامه دَ اسم ده چه دَ موصوف لپاره صفت وي او صفت دَ

ذات لپاره وي او په ذات باندې اسم دلالت کوي او صفت دَ اسم علامت نه دے ځکه چه فعل کله نه کله صفت واقع کيږي، مثال: كَلِمَةٌ تَدُلُّ عَلٰى.

فائده: د صفت پنځه اقسام دي.

**(1)** صفت کاشفه: هغه صفت ته وائي چه په دې سره دَ موصوف تعريف او وضاحت حاصليږي، او صفت کاشفه په هغه وخت کښې وي چه موصوف مجهول وي او صفت معلوم وي.

**(2)** صفت مخصصه: چه دَ موصوف افراد ډير وي او په صفت سره قليل شي، مثال: رَجُلٌ عَالِمٌ.

**(3)** صفت مادحه: چه موصوف بالکل مشهور وي وضاحت ته ضرورت نه وي خو صفت دَ موصوف دَ ثناء بيانولو لپاره ذکر شي، مثال: اللّٰهُ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ.

**(4)** صفت ذامه: چه دَ موصوف دَ ذم بيانولو لپاره ذکر شي، مثال: الشَّيْطَانِ الرَّجِيم.

**(5)** صفت مؤکده: چه دَ موصوف دَ تاکيد لپاره راځي، مثال: نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ، په نَفْخَة کښې دا تاء په وحدت دلالت کوي، ليکن واحدة لفظ ئې دَ تاکيد لپاره ذکر کړے دے.

**11)** يولسم نمبر تائے متحرکه: علامه دَ اسم ده، تاء متحرکه ځکه علامه دَ اسم ده چه دلالت کوي په تانيث باندې او تانيث او تذکير دواړه په اسم کښې وي، لکه ضارِبةٌ. په فعل او حرف کښې نه وي.

فائده: تاء متحرکه نه هغه تاء مراد ده چه په حالت دَ وقف کښې په هـ سره بدليږي، مثال: ضَارِبَةٌ.

فائده: په دې سره هغه اعتراض ختم شو چه څوک وائي چه تاء خو فعل کښې هم شته، مثال: ضَرَبَتْ.

جواب1: دا خو ضمیر مرفوع متصل دے.

جواب2: دا خو تاء ده لیکن په حالت دَ وقف کښې په هـ سره نه بدلیږي او زمونږ مراد هغه تاء ده چه په حالت دَ وقف کښې په هـ سره بدلیږي.

## وعلامت فعل آنست کۀ إلٰی آخره

## علامات فعل

علامات فعل په شعر کښې:

سین سوف جازمه قد تائے ساکنه امر داں
اتصال تائے فُعلتُ ونهي علامت فعل داں

مصنفؒ دَ اسم دَ خواصو نه فارغ شو اوس دَ فعل خواص ذکر کوي:

نمبر1: دَ کلمه په ابتداء کښې قَد راتلل دا دَ فعل علامت دے، مثال: قَدْ ضَرَبَ، قَدْ یَضْرِبُ.

سوال: قد دَ فعل علامه ولی ده؟

جواب: قَد ځکه علامه دَ فعل ده چه قَد په ماضي داخل شي نو دَ تحقیق دَ پاره راځي، قَدضَرَبَ. او قَد چه کله په مضارع باندې داخل شي نو دَ تقلیل لپاره راځي قَد یضرب، او تحقیق او تقلیل په فعل کښې وي نو قَد هم په فعل پورې خاص وي.

فائده: قَد کله نا کله په مضارع کښې هم تاکید او تحقیق پیدا کوي، مثال: قَدْ یَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِیْنَ.

3،2) دویم او دریم نمبر سین او سوف علامات دَ فعل دي، دَ فعل دویم علامت دخول دَ سین مفتوحه دے لکه سَیَقُوْلُ، سَیَضْرِبُ
دَ فعل دریم علامت دخول دَ سَوف دے لکه سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ، سَوْفَ یَضْرِبُ.

فائده: سین او سوف ځکه علامات دَ فعل دي چه مضارع مشترک ده په حال او استقبال کښ، حال ته هم مضارع وائي او استقبال ته هم مضارع وائي، لیکن سین او سوف ئې خاص کوي په استقبال پورې لیکن فرق په کښ دا دے چه سین راځي دَ پاره دَ استقبال قریب او سوف راځي دَ پاره دَ استبقال بعید. لهذا استقبال په فعل کښ وي یا استقبال په فعل پورې خاص وي نو سین او سوف هم په فعل پورې خاص وي.

4) څلورم نمبر علامت حروف جوازم: حروفِ جوازم دَ فعل علامات دي.

سوال: حروف جوازم دَ فعل علامات ولې دي؟

جواب: ځکه چه حروف جوازم خپل مدخول ته جزم ورکوي او جزم خاص دے په فعل پورې نو لهذا حروف جازمه به هم په فعل پورې خاص وي.

سوال: حروف جوازم څو دي او څه عمل کوي؟

جواب: حروف جوازم پنځه دي: إنْ، لَمْ، لَمَّا، لامِ أَمَر، لَائے نهي.

دَ حروف جوازم عمل: حروف جوازم چه په فعل باندی داخل شي نو دوه قسمه عمل کوي لفظي او معنوي.

لفظي عمل: دَ ټولو یو دے پنځه صیغو ته جزم ورکوي، صیغه واحد مذکر ومؤنث غائب ته، لَمْ یَضْرِبْ، لَمْ تَضْرِبْ، صیغه واحد مذکر مخاطب ته، لَمْ تَضْرِبْ، صیغه واحد متکلم وجمع متکلم ته، لَمْ أَضْرِبْ، لَمْ نَضْرِبْ.

فائده: که چرته دَ دې پنځو صیغو په آخر کښ حرف علت وي نو هغه به غرځوي او دَ حرف علت دَ غرځیدلو نه بعد به په مضارع کښ عمل نه کوي، مثال: یَدْعُوْ، لَمْ یَدْعُ.

او دَ اووه صیغو نه نون اعرابي غرځوي کوي:

دوه صیغې دَ تثنیے مذکر غائب او حاضر، لَمْ یَضْرِبَا، لَمْ تَضْرِبَا.

دوه صيغې دَ تثنيې مؤنث غائبه او حاضره، لَمْ تَضْرِبَا، لَمْ تَضْرِبَا.
دوه صيغې دَ جمع مذکر غائب او حاضر، لَمْ يَضْرِبُوْا، لَمْ تَضْرِبُوا.
يو صيغه دَ واحده مؤنثه حاضره، لَمْ تَضْرِبِي.
دوه صيغې دَ جمع مؤنث غائب او حاضر، لَمْ يَضْرِبْنَ، لَمْ تَضْرِبْنَ په دے دووه صيغو کښ لفظا هيڅ عمل نشي کولے، ځکه چه دَ دې په آخر کښ نون دَ ضمير دے او نون دَ ضمير مبني وي او په مبني کښ هيڅ عامل خپل عمل ښکاره کولے نه شي.
البته دَ حروف جوازم معنوي عمل جدا جدا دے.
لَمْ او لمّا: چه کله په فعل مضارع مثبت داخل شي نو په معنٰى دَ ماضي منفي سره ئې ګرځوي او لامِ امر دلالت کوي په طلب دَ فعل باندې، لائے نهي دلالت کوي په ترک طلب دَ فعل باندې طلب او ترک طلب هم په فعل کې وي.
اِنْ شرطيه: چه کله په مضارع داخل شي نو دَ استبقال سره ئې خاص کړي او دا هميشه په دوه جملو داخليږي، إِنْ تَحْفَظْ أَحْفَظْ، چه کله په فعل مضارع داخل شي نو هغهٔ ته لفظاً جزم ورکوي، او چه په فعل ماضي داخل شي نو په دې صورت کښ به دَ ماضي جزم تقديري وي ځکه چه ماضي مبني الأصل وي، مثال: إِنْ ضَرَبْتَ ضَرَبْتُ، اولنې جمله به ورله شرط اودويمه جمله به ورله جزاء وي.

5) پنځم نمبر ضمير مرفوع متصل بارز دَ فعل علامت دے چه کله ضمير مرفوع متصل بارز دَ فعل سره ملحق شي، مثال: ضَرَبْتُ.

فائده: ضمير مرفوع متصل بارز هغه ضمير ته وائي چه دَ فعل سره متصل وي او په ترکيب کښ فاعل يا نائب فاعل واقع شي يعني دَ معلوم په صيغو کښ به فاعل وي او دَ مجهول په صيغو کښ به نائب فاعل وي.

نوټ: دَ فعل په علاماتو کښې ئې ضمیر مرفوع متصل بارز ذکر کړو چه دَ فعل جدا والے دَ اسم فاعل وغیره نه راشي، ځکه چه په اسم فاعل وغیره کښې ضمیر مرفوع متصل وي لیکن مستتر وي نو دلته بارز ذکر کول ډیر مناسب وو.

نوټ: اسم دَ کثرت استعمال دَ وجه نه دَ خفّت تقاضه کوي او په ضمیر مستتر کښې خفت وي، په ضمیر بارز کښې خفّت نه وي.

فائده: دَ ماضي په دولس صیغو کښې ضمیر مرفوع متصل بارز وي او په دوو صیغو کښې ضمیر مرفوع متصل مستتر وي په ضَرَبَ کښې هُوَ او په ضَرَبَتْ کښې هِيَ خو چه کله ورله فاعل اسم ظاهر نه وي.

6) شپږم علامت تاء ساکنه: تاء ساکنه علامت دَ فعل دے لکه ضَرَبَتْ، دَ تاء ساکنه قید ئې ځکه ذکر کړو چه دَ تاء متحرکه نه احتراز راشي ځکه هغه په اسم پورې خاص ده.

7) اووم علامت صیغه امر، مثال: إِضْرِبْ.

دا دَ فعل علامت ځکه دے چه دا په طلب باندې دلالت کوي او په خاص زمانه باندې دلالت کوي.

8) اتم علامت صیغه نهي، مثال: لَا تَضْرِبْ.

او دا دَ فعل علامت ځکه ده چه دلالت کوي په ترک طلب باندے، لهذا طلب او ترک طلب په فعل کښې وي په اسم او حرف کښې نه وي.

فائده: مصنف عليه الرحمة دَ فعل صرف اته علامات ذکر کړي دي، دَ دے نه علاوه ماضي، مثال ئې ضَرَبَ، مضارع، مثال ئې یَضرِبُ، نون تاکید ثقیله، مثال ئې لَیَضرِبَنَّ، نون تاکید خفیفه، مثال ئې لَیَضرِبَنْ، دا هم دَ فعل علامات دي.

فائده نافعه: نون په اووه قسمه دے:

1) نون اعرابي: دا هغه نون دے چه دَ فعل مضارع په آخر کښې راشي دَ مفرد دَ ضمه اعرابي په عوض کښې، لکه يَفْعَلُ يَفْعَلَانِ.
2) نون وقايه:دا هغه نون دے چه دَ فعل آخر دَ کسره نه بچ کړي، مثال: جَاءَنِيْ زَيْدٌ.
3) نون بِنائي: دا هغه نون دے چه دَ دې په ذريعه سره صيغه وغيره مبني ګرځي يا جوړيږي، يَفْعَلْنَ، تَفْعَلْنَ.
4) نون قطني: دا هغه نون دے چه دَ دې په ذريعه سره دوه ساکن اسماء ملاؤ کړے شي، مُحَمَّدُ نِ النَّبِيُّ.
5) نون علامت: دا هغه نون دے چه دَ باب دَ علامت دَ پاره راشي، مثال: باب انفعال.
6) نون ثقيله: نون مشدّد ته وائي: لَيَضْرِبَنَّ.
7) نون خفيفه: نون ساکن ته وائي لَيَضْرِبَنْ.

## علامت حرف آنست إلىٰ آخره

## علامات حرف

علامات حرف په شعر کښې

در حرف هرګز نه باشد اے عزيز
از علامت اسم وفعل هيچ چيز

دَ حرف صرف يو علامت دے هغه دا دے چه دَ اسم او فعل مذکوره علامات پکښې نه وي نو هغه به حرف وي، لکه مِنْ، إلىٰ.

شعر:

والحرف ما ليست له علامة    فقس على قولي تكن علامة

**فائده:** علامت په دوه قسمه دے: وجودي او عدمي

په اسم او فعل کښ وجودي علامتونه دي ځکه چه اسم او فعل اصل دي بنسبت دَ حرف سره او وجودي اصل دے بنسبت دَ عدمي سره او حرف لره ئې عدمي علامت ورکړه (زاد الفقير)

ځکه چه دا اصل ندے په نسبت دَ اسم او فعل سره.

**فائده:** په اسم کښ په يو وخت کښ دوه درې علامات جمع کيدے شي، مثال: رِجَالٌ، بالرَّجُلِ، بالرِّجَال.

**دَ حرف فائده:** دا ده چه دَ حرف په ذريعه سره په دوه کلمو کښ ربط پيدا کيږي: **(1)** کله په دوو اسمونو کښ: زَيْدٌ فِي الدَّار، **(2)** کله په دوو فعلونو کښ، مثال: أُرِيْدُ أنْ أَقرَأَ الْقُرْآنَ. **(3)** او کله دَ فعل او اسم په مابين کښ ربط پيدا کوي، مثال: كَتَبْتُ بِالْقَلَمِ.

## تمرين(3)

په مذكوره الفاظو کښ دَ اسم، فعل او حرف نشاندهي وکړئ

الصَّوْمُ، تَاللهِ، قَد جَلَسَ، أَطْفَالٌ، لِ، سَيَجْتَهِدُوْنَ، أَلْوَلَدَانِ، لَنَصْرِفَنَّ، أُقْرُبْ، عُطْلَةُ الصَّيْفِ، فُوَيْزٌ، نَافِذَةٌ صَغِيْرَةٌ، لَتَنْصُرَنَّ، لَا تَكْسِبْ، خَشِيْتُ، سُمَيْعٰى، قَدْ يَصْدُقُ، أَلْأَفْرَاسُ، نَاكِحَةٌ، عُطْلَةُ الاِخْتِبَارِ، إِنْ تَأْكُلْ، مَدَحَ، سَرَقَتْ، سَنَعْتَرِفُ، مَدْرَسَتَانِ، أَلْفَلَاحُ التَّعْبَانُ، عَادِلَةٌ، بَلْخِيٌّ، غَلَبَةُ الْإِسْلَامِ، فَهِمْتَ، لِنَرْجِعْ، رُمِيْتِ، لَيَتَّخِذَنْ، بَا، لَا تَقُلْ، سَوْفَ أُكَبِّرُ، فَاطِمَةُ اِمْرَأَةٌ، و، الشَّاعِرُ كَاذِبٌ، عِرَاقِيٌّ، خِدْمَةُ الدِّيْنِ، الرَّجُلُ الْكَبِيْرُ، اَلْخُدَّامُ، لَمَّا نَتُبْ، لَمْ يَتْرُكْ، سَوْفَ تُجَاهِدُوْنَ، زَيْدٌ، حَضَرَ العَامِلُوْنَ، جَآءَ الْأَوْلَادُ، التِّلْمِيْذَتَانِ الْمُجْتَهِدَتَانِ، الْأَزْهَارُ الْحَمْرَاءُ.

# مُعْرَبْ و مَبْنِي تفصيلي بحث

شعر: مبني آں باشد که ماند برقرار

معرب آں باشد که گرد د بار بار

دَ مطالعه دَ پاره په ځلورو خبرو کښې دويم نمبر معرب او مبني پيژندل دي مصنف؈ اوس هغه ذکر کوي.

فائده: په علم النحو کښې دَ عامل او معمول او اعراب بحث اهم ترين بحث دے بلکه دَ دې فن اصلِ مقصود دے. لهذا دَ طلباء کرامو دَ فائدے دَ پاره يوځو فائدے ذکر کوو چه دَ معرب او مبني بحث يادول او پيژندل آسان شي.

فائده1: په اسم به دَ درې معنونه يو معنىٰ خامخا راځي، کله دَ فاعليت معنىٰ، مثال: جَاءَ زَيْدٌ کښې په زيدٌ باندې دَ فاعليت معنىٰ ده، کله دَ مفعوليت معنىٰ، مثال: رَأَيْتُ زَيْدًا کښې په زيدًا باندې دَ مفعوليت معنىٰ ده، کله دَ مجروريت معنىٰ، مثال: مَرَرْتُ بِزَيْدٍ کښې په زَيدٍ باندې دَ مجروريت معنىٰ ده.

فائده2: (1) چه په اسم باندے کله دَ فاعليت (يا دَ هغه د قائم مقام معنىٰ راشي) نو په اصطلاح دَ نحو کښې وائي چه په دے اسم باندے حالت رفعي دے.

(2) او چه په اسم باندے کله دَ مفعوليت (يا دَ هغه قائم د مقام معنىٰ راشي) نو په اصطلاح دَ نحوکښې وائي چه په دے اسم باندې حالت نصبي دے.

(3) او چه په اسم باندے کله دَ مجروريت يا اضافت (يا دَ هغه د قائم مقام معنىٰ راشي) نو په اصطلاح دَ نحو کښې وائي چه په دې اسم باندې حالت

جري دے.

په اولني مثال کښ زيدٌ په حالت رفعي په دويم کښ په حالت نصبي په دريم کښ په حالت جري کښ دي.

فائده3: په اسم چه کومه معنٰی راځي نو دا پرے خود بخود نه راځي بلکه دَ بل يو څيز دَ تقاضې دَ وجه نه راځي او هغې ته عامل وائي او په کوم اسم چه راشي هغه ته معمول وائي، په مذکوره مثالونو کښ جَاءَ، رَأَيْتُ، بَا عاملان دي او زَيْدٌ ئې معمول دے.

فائده4: چه کله دَ عامل دَ تقاضه دَ وجے نه په اسم کښ يوه معنٰی پيدا شي نو دا به مونږ دَ دغه اسم دَ آخري حرف يا حرکت نه پيژنو چه دَ فاعليت، مفعوليت، يا مجروريت معنٰی ده او دغه حرف يا حرکت ته اعراب وائي.

فائده5: اعراب په دوه قسمه دے: (1) اعراب بالحرکت، (2) اعراب بالحرف

اعراب بالحرکت په درې قسمه دے: ضمه، فتحه، کسره.

مثالونه: جَاءَ زَيْدٌ، رَأَيْتُ زَيْدًا، مَرَرْتُ بِزَيْدٍ.

اعراب بالحرف په درې قسمه دے: واؤ، الف، ياء.

مثالونه: جَاءَ أَبُوْكَ، رَأَيْتُ أَبَاكَ، مَرَرْتُ بِأَبِيْكَ.

فائده6: چه په کوم حرف باندې اعراب راشي هغه ته محل اعراب وائی، په زَيْد کښ دال محل اعراب دے.

فائده: 1) چه دَ کوم عامل دَ وجے نه په اسم باندې دَ فاعليت معنٰی راشي هغه ته عامل رافع وائي او په کوم اسم چه راشي هغه ته مرفوع وائي او په کوم حرف يا حرکت سره چې اظهار وشي هغه ته اعراب رفعه وائي.

2) چه دَ کوم عامل دَ وجے نه په اسم باندې د مفعوليت معنٰی راشي هغه ته عامل ناصب او په کوم اسم چه راشي هغه ته منصوب وائي او په کوم حرف يا حرکت سره چه اظهار وشي هغه ته اعراب نصب وائي.

3) چه دَ کوم عامل دَ وجے نه په اسم باندے دَ مجروریت معنٰی راشي هغه ته عامل جار وائي او په کوم اسم چه راشي هغه ته مجرور وائي او په کوم حرف یا حرکت سره چه اظهار اوشي هغه ته اعراب جر وائي.

خلاصه: دَ عامل، معمول او اعراب دَ هر یو دري قسمونه یا نومونه دي:

1) عامل رافع، عامل ناصب، عامل جر
2) مرفوع، منصوب، مجرور.
3) رفع، نصب، جر.

## بدانکه جمله کلمات عرب دو قسم است معرب و مبنی

مصنفؒ فرمائي چه ټول کلمات عربي په دوه قسمه دي:معرب او مبنی

## معرب آنست که آخرش باختلاف عوامل...

مصنفؒ دَ معرب او مبني تفصیل ذکر کوي، حضرت میرؒ دَ مبتدي طلباء دَ آساني دَ پاره دَ معرب او مبني حکم بیان کړے دے، اصل تعریف ئي علامه ابن حاجبؒ ذکر کړے دے.

دَ اسم معرب تعریف: هُوَ کُلُّ اسْمٍ رُکِّبَ مَعَ غَیْرِهٖ وَلَا یُشْبِهُ مَبْنِيَّ الْأَصْلِ.

ترجمه: معرب هغه اسم ته وائي چه مناسبت یې دَ مبني الاصل سره نه وي او مرکب مع الغیر وي، مثال: جَاءَ زَیْدٌ.

وجه تسمیه: معرب دَ اعراب نه دے په معنٰی دَ ظاهر کولو سره نو په دي باندې اعراب ظاهر کیږي نو معرب ورته ځکه وائي.

دَ معرب حکم: أَنْ یَّخْتَلِفَ آخِرُهٗ بِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ اِخْتِلَافًا لَفْظِیًّا أَوْ تَقْدِیْرًا.

ترجمه: چه آخر یې مختلف کیږي په اختلاف دَ عواملو سره.برابره ده که اختلاف لفظي وي او که تقدیري.

مثالونه: جَاءَ زَیْدٌ، جَاءَ مُوْسٰی، رَأَیْتُ مُوْسٰی، مَرَرْتُ بِمُوْسٰی.

ترکیب: جَاءَ مُوسٰی: جَاء فعل موسٰی ئې فاعل، فعل سره دَ فاعل نه جمله فعليه خبريه.

معرب په دوه قسمه دے: (1)اسم متمکن چه په ترکیب کښ واقع وي، جَاءَ زَيدٌ، (2) او هغه مضارع چه دَ نون جمع مؤنث او نون تاکيد ثقيله او خفيفه نه خالي وي، يَفْعَلُ، يَفْعَلَانِ، يَفْعَلُوْنَ.

مبني په دوه قسمه ده: (1) مبني الأصل، (2) غير مبني الأصل.

مبنى الأصل تعريف: هُوَ اِسْمٌ وَقَعَ غَيْرَ مُرَكَّبٍ مَعَ غَيْرِه.

مثال: ا، ب، ت، واحد. مراد ترينه مسميات دي.

مبنى الأصل چه بناء دَ هغې اصلي وضعي وي نه دَ مشابهت دَ غير نه

مثال: ضَرَبَ، اِضْرِبْ، مِنْ

دَ مبنى الأصل حکم: چه يو قسم اعراب به پکښ نه وي، نه لفظي نه تقديري نه محلي، ځکه چه اعراب دَ معنٰى مقتضى په وجه وي او معنٰى مقتضى په مبنى الأصل کښ نشته.

غير مبنى الأصل تعريف: چه دَ مبني الاصل سره ئې مشابهت وي

غير مبني الأصل حکم: فَحُكْمُه أَنْ لَّا يَخْتَلِفَ آخِرُهُ بِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ.

ترجمه: حکم د مبني غير اصل دا دےچه آخر به ئي نه مختلف کيګي په اختلاف د عواملو سره.

چه اعراب به پکښ محلي وي او لفظ کښ به ئې تغير نه راځي، مثال: جَاءَ هٰؤُلَاءِ، رَأَيْتُ هٰؤُلَاءِ، مَرَرْتُ بِهٰؤُلَاءِ.

مبني الأصل په درې قسمه دے: (1) فعل ماضي، (2) امر حاضر معلوم، (3) جمله حروف.

غير مبني الأصل هم په درې قسمه دے: (1) اسم غير متمکن، (2) اسم متمکن چه په ترکیب کښ واقع نه وي، (3) او هغه مضارع چه نون جمع

مؤنث او نون تاكيد ثقيله، خفيفه پكښې وي.

دَ اسم متمكن تعريف: اسم متمكن هغه ته وائي چه دَ مبني الأصل سره ئې مشابهت نه وي او اعراب ثلاثه سره دَ تنوين نه به پرې جاري كيږي، مثال جَاءَ زَيدٌ.

وجه تسميه: متمكن دَ باب تَفَعُّلْ نه دَ اسم فاعل صيغه ده په معنٰى دَ ځائے وركولو سره چونكه دا هم هر قسمه اعراب ته ځائے وركوي نو ځكه ورته اسم متمكن وائي.

دَ اسم غير متمكن تعريف:اسم غير متمكن هغه ته وائي چه دَ مبني الاصل سره ئې مشابهت وي او اعراب ثلاثه سره دَ تنوين نه به پري نه جاري كيږي، مثال: جَاءَ هٰؤُلَاءِ، رَأَيْتُ هٰؤُلَاءِ، مَرَرْتُ بِهٰؤُلَاءِ.

اختلاف: شيخ ابن حاجبؒ فرمائي چه اسم متمكن په تركيب كښې واقع نه وي نو مبني برسكون به وي لكه زيد بكر.

او علامه زمخشريؒ فرمائي چه معرب به وي.

او حضرت ميرؒ دَ ابن حاجبؒ مذهب اختيار كړے دے.

فائده1: په كلماتو كښې تمام حروف ټول په ټوله مبني دي او دا مبني ځكه دي چه په دي كښې علت اعراب نشته، او علت اعراب دوه څيزونه دي:

1) يو معاني ثلاثه چه فاعليت، مفعوليت، اضافت او مجروريت دے
2) او دويم دَ اسم معرب سره مشابهت كامله.

نو دا دواړه په حروفو كښې نشته.

فعل ماضي: په افعالو كښې دَ فعل ماضي تمام صيغے، كه دَ معلوم وي او كه دَ مجهول ، ټولې مبني دي، او دا مبني ځكه دي چه علت اعراب پكښې نشته.

فائده2: امر حاضر مجهول، امر غائب معلوم، نهي حاضر وغائب معلوم

ومجهول، فعل جحد، فعل نفي مؤكد بلن ناصبه، دَ دې ټولو حکم دَ مضارع والا دے.

فائده3: دَ معرب او مبني آخري حالت ظاهر کولو طريقه عام طور باندے يوه ده، ليکن دَ حرکاتو نومونه ئې بدل دي چه دَ معرب آخر کښې وي نو رفع، نصب، جر، او چه دَ مبني په آخر کښې وي نو فتحه، کسره، ضمه ورته وائي.

## تمرين (4)

دَ معرب او مبني دَ اقسامو نشاندهي وکړې.

يَقْتَرِنُ، مِنْ، يَتَبَسَّمُ سَعِيْدٌ، خَالِدٌ، لَأَقْبِضَنَّ، مُنْذُ، كَشَفُوْا، يَخْطُبُ الْخَطِيْبُ، عَنْ، رَشِيْدٌ، رَأَيْتُ هٰؤُلَاءِ، هُوَ الَّذِيْ، اِخْتَرِقِيْ، يَنْصَحْنَ، فَازَ حَمِيْدٌ، هُمْ، إِلٰى، يَنْصُرُوْنَ، صُمْنَا، عَدَلَهُمْ، كِ، تَحْتَرِقُ، اِحْفَظِ الدَّرْسَ، حَامِدٌ يُصَلِّيْ وَيَذْكُرُ اللّٰهَ وَيَتْلُو الْقُرْآنَ، رَجَعْنَا إِلَى الْبَيْتِ، تَجْرِي السَّفِيْنَةُ فِي الْبَحْرِ، نَظِّفْ، أُسْكُتِيْ، إِغْسِلْ، إِنْطِقْ بِالصِّدْقِ.

## بدانکه اسم غير متمکن هشت قسم آست

## دَ اسم غير متمکن اقسام

اوس مصنف عليه الرحمة دَ اسم غير متمکن قسمونه ذکر کوي او دا په اته قسمه دي:

(1) مضمرات، (2) اسمائے اشارات، (3) موصولات، (4) اسمائے اصوات، (5) اسمائے ظروف، (6) اسمائے کنايات، (7) مرکب بنائي، (8) اسمائے افعال.

د اسم غير متمكن اولنۍ قسم مضمرات

دَ مضمرات تعريف: مضمرات جمع دَ مضمر ده، مضمر او ضمير يو شئ دے، معنٰی ئې مخفي او پوشيده يعني پټ څيز ته وائي.

او په اصطلاح کښې مَا وَضِعَ لِمُتَكَلِّمٍ أَوْ مُخَاطَبٍ أَوْ غَائِبٍ تَقَدَّمَ ذِكْرُهُ لَفْظًا أَوْ مَعْنًا أَوْ حُكْمًا.

ضمير هغه اسم ته وائي چه په داسے متکلم، مخاطب يا غائب باندې دلالت وکړي چه دَ هغه ذکر مخکښې لفظًا يا معنًا يا حکمًا ذکر شوے وي.

لفظی مثال: اَلْكَلِمَةُ: هِيَ اِسْمٌ وَفَعْلٌ وَحَرْفٌ.

معنوی مثال: اَلْمَرْفُوْعَاتُ: هُوَ مَا اشْتَمَلَ عَلٰى عَلَمِ الْفَاعِلِيَّةِ.

حکمی مثال: چه معهود في الذهن وي، مثال: قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَد.

فائده: متکلم خبره کونکي ته وائي، مثال: أَنَا، نَحْنُ.

مخاطب چا سره چه خبرے کوي: أَنْتَ، أَنْتُمَا، أَنْتُمْ.

غائب دَ چا متعلق چه خبرے کوي، هُوَ، هُمَا، هُمْ.

فائده: څنګه چه اسم مرفوع، منصوب، مجرور واقع کيدلو، نو هغسې ضمير هم مرفوع، منصوب، مجرور واقع کيږي.

مرفوع نشاني دَ فاعل ده، منصوب نشاني دَ مفعول ده، مجرور نشاني دَ مضاف اليه ده.

فائده: ضمير مرفوع په دوه قسمه دے: **(1)** ضمير مرفوع متصل، **(2)** ضمير مرفوع منفصل.

ضمير منصوب هم په دوه قسمه دے: **(1)** ضمير منصوب متصل، **(2)** ضمير منصوب منفصل.

او ضمير مجرور صرف يو قسم دے چه ضمير مجرور متصل دے.

په دے کښې دَ هر يو قسم څوارلس ضمائر دي، نو ټول **70** ضمائر جوړيږي.

دَ ضمير مرفوع متصل تعريف: هغه ضمير دے چه دَ خپل عامل سره متصل راشي او په ترکيب کښ فاعل يا نائب فاعل واقع شي، لکه ضَرَبْتُ کښ "تُ" ضَرَبنَا کښ "نَا" او ضَرَبتَ کښ "تَ" او ضربتُمَا کښ "تُما"، ضَربتُم کښ "تُم" ضربتِ کښ "تِ" ضَربتُما کښ "تما" ضَربتُنَّ کښ "تُنَّ" ضَرب کښ "هُو" ضَرَبا کښ "الف" ضربوا کښ "واؤ" ضرَبت کښ "هي" ضرَبَتَا کښ "الف" ضربنَ کښ "نَ".

د ضمير مرفوع منفصل تعريف: (1) چه دَ خپل عامل سره متصل نه وي او په ترکيب کښ مبتدا يا خبر يا ضمير فصل واقع کيږي، هُوَ قَائمٌ وأولئك هم المفلحون، کله فاعل واقع کيږي، مثال: مَا قام إلّا أنا (بحواله تسهيل النحو والمنهاج الکامل)

يا ضير مرفوع منفصل هغه ته وائي چه مستقل وي په تلفظ کښ، مثال د ضمير مرفوع منفصل

أَنَا،نَحْنُ، أنْتَ، أنْتُمَا، أَنْتُمْ، أَنْتِ، اَنْتُمَا، أَنْتُنَّ، هوَ، هُمَا، هُمْ، هِيَ، هُمَا، هُنَّ.

فائده: ضمير مرفوع متصل په دوه قسمه دے: (1) بارز او (2) مستتر.

مرفوع متصل بارز: هغه ته وائي چه ظاهر وي، مثال: ضرَبا کښ الف او په ضربوا کښ واؤ، او مستتر هغه ضمير ته وائي چه ظاهر نه وي بلکه دَ خپل طرف نه ئې اعتبار وکړے شي، مثال: ضرب کښ هو او ضَرَبَتْ کښ هي.

1) په دے دوو صيغو کښ به ضمير مرفوع متصل مستتر وي.
2) په ضربتْ کښ دا تاء ساکنه ضمير نه دے بلکه نشاني دَ مؤنث ده.
3) دَ ماضي په دے دوو صيغو کښ به ضمير په هغه وخت کښ مستتر وي چه فاعل ئې اسم ظاهر نه وي، مثال: ضرَبَ، او چه فاعل ئې اسم ظاهر وي، مثال: ضرَبَ زيدٌ نو بيا به پکښ ضمير نه وي.

4) په دولسو صيغو کښې ټول لس ضمائر دي: الف، واؤ، نَ، تَ، تُمَا، تُمْ، تِ، تُنَّ، تُ، نَا، دا ضمائر مرفوع متصل بارز دي.

فائده: ضمير مرفوع متصل مستتر په دوه قسمه دے: (1) واجب الاستتار، (2) جائز الاستتار.

واجب الاستتار تعريف: چه هميشه دَ پاره پټ وي لکه انسان چه هميشه دَ پاره قبر کښې پټ شي، او دا په څلورو مقاماتو کښې وي:

(1) په صيغه واحد مذکر مخاطب فعل مضارع لکه تَضْرِبُ کښې أَنْتَ ضمير.

(2) په صيغه واحد مذکر امر حاضر معلوم لکه اِضْرِبْ کښې أَنْتَ ضمير.

(3) په صيغه واحد متکلم فعل مضارع، أَضْرِبُ کښې أَنَا ضمير.

(4) په صيغه جمع متکلم فعل مضارع، نَضْرِبُ کښې نَحْنُ ضمير.

دغسې د اسم تفضيل ضمير واجب الاستتار دے (هداية النحو، کافية)

او دغسې دَ اسماء صفات دَ تثنيو او جمع سالم صيغو ضمير هم واجب الاستتار وي.

جائز الاستتار تعريف: چه کله پټ او کله ښکاره وي، او جائز الاستتار په درې مقاماتو کښې وي.

1) په صيغه واحد مذکر غائب کښې.

2) په صيغه واحد مؤنثه غائبه کښې که معلوم وي او که مجهول وي او که ماضي وي او که مضارع وي.

3) په تمام اسماء صفات کښې چه کله دَ مفرد صيغې وي: اسم فاعل، اسم مفعول، صيغه مبالغه، صفت مشبه.

ضمير منصوب په دوه قسمه دے: (1) ضمير منصوب متصل (2)ضمير منصوب منفصل.

**د ضمير منصوب متصل تعريف:** چه دَ خپل عامل سره پیوست راشي او په ترکیب کښې مفعول به واقع شي، مثال: ضربَنِيْ کښې "ي"، ضَرَبَنَا کښې "نا" ضَرَبَكَ کښې "كَ"، ضَرَبَكُمَا کښې "كُمَا"، ضَرَبَكُمْ کښې "كُمْ"،ضَرَبَكِ کښې "كِ"، ضَرَبَكُمَا کښې "كما"، ضَرَبَكُنَّ کښې "كُنَّ"، ضَرَبَه کښې "ه"، ضَرَبهُمَا کښې "همَا"، ضَرَبهُمْ کښې "همْ"، ضَرَبهَا کښې "ها"، ضَرَبَهُما کښې هُمَا، ضَرَبَهُنَّ کښې هُنَّ.

یا دَ حروف مشبه بالفعل سره پیوست راشی او په ترکیب کښې ورلره اسم واقع شي، لکه إِنَّنِيْ، إِنَّنَا، إِنَّك، إِنَّكُمَا، إِنَّكُمْ، إِنَّكِ، إِنَّكُمَا، إِنَّكُنَّ، إِنَّهُ، إِنَّهمَا، إِنَّهُمْ، إِنَّهَا، إِنَّهُمَا، إِنَّهُنَّ.

یا د اسماءافعالو سره راشی او په ترکیب کښې ورله مفعول به واقع شي.

رُوَيْدَنِي، رُوَيْدَنَا،رُوَيْدك،رُوَيْدكما،رُوَيْدكم،رُوَيْدكِ، رُوَيْدكُما،رُوَيْدكُنَّ، رُوَيْدهُ، رُوَيْدهُمَا، رُوَيْدهُمْ، رُوَيْدهَا، رُوَيْدهُمَا، رُوَيْدهُنَّ.

**د ضمير منصوب منفصل تعريف:** چه دَ خپل فعل سره پیوست نه وي او په ترکیب کښې مفعول به واقع شي، لکه إِيَّاكَ نَعْبُدُ، فَإِيَّايَ فَاتَّقُوْنَ.

إِيَّايَ، إِيَّانَا، إِيَّاكَ، إِيَّاكُمَا، إِيَّاكُمْ، إِيَّاكِ، إِيَّاكُمَا، إِيَّاكُنَّ، إِيَّاه، إِيَّاهُمَا، إِيَّاهُمْ، إِيَّاهَا، إِيَّاهُمَا، إِيَّاهُنَّ.

**د ضميرمجرور متصل تعريف:** چه دَ حرف جر نه بعد واقع شي او په ترکیب کښې مجرور واقع شي، لکه لِيْ، لَنَا، لَكَ، لَكُمَا، لَكُمْ، لَكِ، لَكُمَا، لَكُنَّ، لَه، لَهُمَا، لَهُمْ، لَهَا، لَهُمَا، لَهُنَّ.

یا دَ اسم نه بعد راشي او په ترکیب کښې مضاف اليه واقع شي، لکه غُلَامِيْ، غُلَامُنَا، غُلَامُكَ، غُلَامُكُمَا، غُلَامُكُمْ، غُلَامُكِ، غُلَامُكُمَا، غُلَامُكُنَّ، غُلَامُه، غُلَامُهُمَا، غُلَامُهُمْ، غُلَامُهَا، غُلَامُهُمَا، غُلَامُهُنَّ.

**فائده:** (1) که ضمير مجرور متصل دَ حرف جر نه بعد راشي نو هغه ته به

ضمير مجرور متصل بحرف جر وائي. (2) او كه اسم نه بعد واقع شي نو دې ته ضمير مجرور متصل باضافت وائي، دَارُنَا، كَتَبْتُ لَكُمْ.

**تركيب:** كتبتُ فعل بفاعل، لكم لام حرف جر كم ضمير مجرور متصل بحرف جر، جار مجرور متعلق شو په كتبتُ فعل پورے، كتبتُ فعل سره دَ خپل فاعل او متعلق نه جمله فعليه خبريه.

**فائده:** ضَرَبَنِيْ كښې دوه ضمائر دي، يو هُوَ او بل ي، او په درميان كښې نون وقايه دے چه دَ فعل آخر ئې دَ كسره نه بچ كړے دے.

**فائده:** ضمير منصوب منفصل په كلام كښې زيات تر دَ زور او حصر پيدا كولو دَ پاره ذكر كولے شي او خصوصًا چه دَ فعل نه مقدم وي، ايَّاكَ نَعْبُدُ مونږ خاص تا لره عبادت كوو.

**تركيب:** إِيَّاكَ ضمير منصوب منفصل مفعول به مقدم نعبدُ فعل بفاعل، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه.

**فائده:** ضمائر ټول په ټوله مبني دي ځكه چه په مبني الأصل كښې ئې دَ حروف سره مشابهت دے په احتياج كښې څنګه چه دَ حروف معنٰى دَ دويمے كلمے دَ ملاويدو نه بغير په ذهن كښې نه راځي هم دغسے دَ ضمائرو معنٰى دَ مرجع نه بغير په ذهن كښې نه راځي. بعض ضمائرو كښې دَ بناء نورے وجے هم شته لكه شبه وضعي په "ك" خطاب كښې او "هو" وغيره كښې.

**فائده:** صرفي حضرات ګردان دَ غائب نه شروع كوي او نحوي حضرات دَ متكلم نه شروع كوي، وجه دا ده چه دَ صرفي حضراتو كار دَ ګردان سره وي او په ګردان كښې اصل غائب دے، او نحوي حضرات بحث دَ معرفه او نكره نه كوي او په معرفه كښې اصل متكلم دے نو ځكه دَ متكلم نه شروع كوي.

## تمرين (5)

په جملون کښې دَ ضمائرو د اقسام تلاش وکړئ او ترجمه او ترکیب وکړئ.

أَنَا ضَرَبْتُه بِالْعَصَا، إِيَّاهُمْ جَرَّبْنَا، أَذْهَبُ إِلٰى دَارِيْ، هُمْ شَارِبُوْنَ، أَنَا أَبُوْه، ثِيَابُكُنَّ نَظِيْفَةٌ، مَدَحَكُمْ سَعِيْدٌ، عَلَّمَنَا رَبُّنَا، دَخَلَتْ، إِيَّاهُمْ أَخْرَجَ السُّلْطَانُ، وَجَدْتِّ مَالًا، قَاتِلُوْهُمْ، لَعَلَّهُ أَبُوْ زَيْدٍ، إِغْفِرْ، تَخْلُقُوْنَ، كَأَنَّهُ أَسَدٌ، هُوَ بَعِيْدٌ مِنِّيْ، رَازِقُنَا اللّٰهُ، أَنَا أَقْرَبُ مِنْكُمْ، كَتَبُوْا، أُعْبُدُوا اللّٰهَ، بِعْ فَرَسَكَ، لَه عِلْمٌ، بِكَ آمَنْتُ، جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ، خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ، وَأَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعَالَمِيْنَ، بَارَكَ اللّٰهُ لَكُمْ، وَأَنَا اخْتَرْتُكَ، وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ، أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ، قَاتِلُوْهُمْ، لَكُمُ الْقَرَابَةُ، الزَّيْدُوْنَ شَرِيْفُوْنَ، هُنَّ سَافِرَاتٌ، إِذْهَبَا إِلٰى فِرْعَوْنَ، شَرِبْتُ مَآءً، شُكْرُه وَاجِبٌ عَلَيْنَا، ضَرَبْتُنَّهُمْ، نَصَرْتَنِيْ، أَنَا جَدُّهُمْ، نَحْنُ، تَجْمَعُ مَالًا، أَكَلَ طَعَامًا، إِغْسِلْ فِرَاشًا، إِسْمَعِيْ كَلَامًا، كَتَبْتُ، زَلَّتْ قَدَمُه، تَسْتَيْقِظُ مِنْ نَوْمِكَ، الْيَوْمَ نَرْجِعُ إِلٰى بُيُوْتِنَا.

## دَ اسم غیر متمکن دویم قسم اسمائے اشارات

اسماء: جمع دَ اسم او اشارات جمع دَ اشاره ده.

دَ اسم اشاره تعریف: چه یو څیز طرف ته دَ اشاره حسیّه کولو په وخت کښې استعمال شي، لکه هذَا الرَّجُلُ، هذَا الْقَلَمُ.

دَ اشاره حسیّه نه مراد چه دَ بدن په ظاهري اعضاؤ سره وشي.

نوټ: په ضمیر غائب او لام تعریف سره اشاره ذهنیه کیږي.

اسمائے اشارات دا دي: ذَا و ذَانِ و ذَيْنِ، تَا، تِيْ، تِهْ، تِهِيْ، ذِهْ و ذِهِيْ، تَانِ و تَيْنِ، أُوْلآء بمد او أُوْلٰى بقصر.

فائده: چرته چه اسم اشاره وي هلته به څلور څيزونه وي: (1) مُشِير، (2) مُشار له، (3) اسم اشاره، (4) مشار اليه.

مشير: اشاره كونكي ته وائي، مشار له: دَ څه لپاره چه اشاره كوي، اسم اشاره: په څه سره چه اشاره كوي،مشار اليه كوم څيز طرف ته چه اشاره كوي.

فائده: مشار اليه به دَ دوو حالو نه خالي نه وي يا به مذكر يا به مؤنث وي، بيا به يا واحد يا تثنيه يا جمع وي، دا ټول شپږ شو.

## تفصيل دَ اسماء اشاراتو

1) ذا: اسم اشاره دَ واحد مذكر لپاره راځي.
2) تَا، تِيْ، تِهْ، تِهِيْ، ذِهْ، ذِهِيْ دا شپږ دَ واحد مؤنث لپاره راځي.
3) ذانِ دَ تثنيه مذكر لپاره په حالت رفعي كښې او ذَينِ دَ تثنيه مذكر لپاره په حالت نصبي او جري كښې.
4) تَانِ دَ تثنيه مؤنث لپاره په حالت رفعي كښې او تَيْنِ دَ تثنيه مؤنث لپاره په حالت نصبي او جري كښې.
5) أُولآء بمد او أُولٰى بقصر دا دواړه دَ جمع مذكر ومؤنث لپاره راځي

فائده: أُوْلٰى په الف مقصوره سره لغت دَ بنو تميم دے او أُولآء په الف ممدوده سره لغت دَ اهل حجازو دے، او دا لغت ډير بهتر دے ځكه چه قرآن مجيد كښې نازل شوے دے.

فائده: كله دَ اسم اشاره په ابتداء كښې "ہ" لګيږي او ديته "ہ" تنبيه وائي، مثال: د ذَا نه هَذا او د ذِه نه هَذِه.

يعني مخاطب ته په مشار اليه باندې دَ تنبيه لپاره راځي چه مخاطب غافله نشي.

فائده: او کله نا کله دَ اسمائے اشارات په آخر کښې حروف خطاب استعمالیږي، كَ، كُمَا، كُمْ، كِ، كُمَا، كُنَّ، چه دَ دې صورت دَ ضمائرو پشان دے لیکن دَ نحویانو حضراتو په دې خبره اتفاق دے چه دا اسماء ندي بلکه حروف خطاب دي دَ مخاطب په مفرد، تثنیه، جمع باندې دلالت کوي.

فائده: دَ مشار الیه درې مراتب دي یعني مشار الیه به خالي نه وي: (1) یا به قریب وي، (2) یا به متوسط وي، (3) یا به بعید وي، که چرته مشار الیه قریب وه نو دَ ک، ل نه بغیر به اسم اشاره استعمالیږي، مثال: هذا، ها، او که مشار الیه متوسط وي نو دَ کاف سره به اسم اشاره استعمالیږي، مثال: ذاک، تاک، او که مشار الیه بعید وه نو دَ ک، لام سره به اسم اشاره استعمالیږي، تلک، ذالک.

فائده: ذانِ، ذَیْنِ، تَانِ، تَیْنِ کښې دَ نحویانو اختلاف دے، بعض حضرات فرمائي چه دا معرب دے ځکه چه آخر ئې په حالت رفعي، نصبي، جري کښې مختلف کیږي.

لیکن جمهور حضرات فرمائي چه دا خبره درست نده ځکه دا کوم حالت ئې چه بدلیږي دَ عامل دَ وجے نه بدلیږي بلکه دا واضع داسې وضعه کړي دي په حالت رفعي او نصبي او جري کښې.

فائده: دَ اسم اشاره په جمع أُوْلٰى کښې دَ همزه نه بعد واؤ لیکلے کیږي او وئیلے کیږي نه چه التباس ئې دَ إِلٰى حرف جر سره رانشي.

فائده: دَ اسمائے اشارات دَ مبني کیدو وجه دا ده چه په مبني الأصل کښې ئې دَ حروف سره مشابهت دے په احتیاج کښې ځنګه چه دَ حروف معنٰی دَ دویمه کلمے دَ ملاؤیدو نه بغیر په ذهن کښې نه راځي نو دغه شانتے دَ اسمائے اشارات معنٰی دَ مشار الیه نه بغیر په ذهن کښې نه راځي.

فائده: دَ مشار اليه قاعده: مشار اليه به يا معرّف باللام وي يا به مضاف وي، که مشار اليه معرف باللام وه نو اسم اشاره به دَ مشار اليه نه مخکښ راوړل ضروري وي، مثال: هذا الطالب، او که مشار اليه مضاف وه نو اسم اشاره دَ مشار اليه نه روستو راوړل ضروري دي، مثال: كِتَابُكُم هذا، په دې دواړو صورتونو کښې دا اسم اشاره او مشار اليه دي.

او که دَ اسم اشاره نه په روستو اسم باندے الف لام نه وي نو دا به بيا مبتداء او خبر وي ، مثال: هذا قَلَمٌ، په اصل کښې عبارت داسے دے هذا الشَيْئُ قَلَمٌ.

## تمرين (6)

دَ جملو ترجمه وکړئ او د اسم اشاره او مشار اليه نشاندهي وکړئ

هذَا شَجَرٌ، تِلْكَ سبُّوْرَةٌ، هؤُلَاءِ مُسْلِمَاتٌ، تَانِكَ كُرَّاسَتَانِ، هَؤُلآء الرِّجَالُ صَالِحُوْنَ، هذِهِ السَّاعَاتُ غَالِيَةٌ، أُوْلئَكَ فَلَّاحُوْا الْبَلَدِ، تِلْكَ الدُّرُوْسُ سَهْلَةٌ، أُوْلٰئِكَ بَنَاتٌ، ذَاكَ وَلَدٌ، ذَاكَ بَابٌ، هذَا حَقْلُ الْقُطْنِ، هذَا كِتَابٌ عَرَبِيٌّ، تِلْكَ مَنَارَةُ قُطُبٍ، أولٰئِك مُعَلِّمُوْنَ، سُؤَالُ هٰذَيْنِ الطِّفْلَيْنِ مُشْكِلٌ، جَوابُ ذَيْنِكَ الرَّجُلَيْنِ صَحِيْحٌ، خَطُّ هَاتَيْنِ الأُخْتَيْنِ جَمِيْلٌ، كِتَابُ تَيْنِك الْبِنْتَيْنِ عَجِيْبٌ.

## د اسم غير متمکن دريم قسم اسمائے موصولات

(3)اسمائے موصوله: اسمائے موصوله چونکه په کلام عرب کښې په کثرت سره استعماليږي نو دَ دے متعلق يو څو فائدے ليکل ضروري دي دَ طلباء کرامو دَ فائدے لپاره.

دَ اسم موصول تعريف: چه دَ استعمال په وخت کښې دَ جملے کامل جزء

جوړيدو لپاره يو جملې او عائد ته محتاجه وي يعني دَ جملې جزء به په هغه وخت كښې جوړيږي چه روستو ترينه جمله وي او په هغه كښې ضمير وي چه راجع وي اسم موصول ته، مثال: جَاءَنِي الَّذِيْ ضَرَبَكَ، الَّذِي ضَرَبَكَ دَ جَاءَ دَ پاره فاعل دے.

دَ صلې تعريف: په لغت كښې ملاويدل.

او په اصطلاح كښې صله هغه جملې ته وائي چه دَ اسم موصول نه روستو وي او دَ عائد تعريف: كوم ضمير چه پكښې اسم موصول ته راجع وي هغه ته عائد وائي.

فائده: اسم موصول ته چه كوم ضمير راجع وي هغه به دَ غائب وي، او دَ اسم موصول مطابق به وي په واحد ، تثنيه، جمع او په مذكر او مؤنث كښې.

فائده: كومه جمله چه صله جوړيږي دا به يا صريحيّه وي، مثال: جاءني الَّذي ضَربَكَ، او يا به مؤوله وي، مثال: الضَّارِبُ بمعنٰى الَّذِيْ ضَرَبَ، او يا به مقدّره وي، مثال: الَّذِي فِي الدَّار بمعنٰى الَّذِي ثَبَتَ فِي الدَّارِ.

فائده: عائد نه مراد رابط دے چه دَ صله او اسم موصول په ما بين كښې ربط پيدا كوي.

فائده: اسمائے موصوله: الَّذِيْ، اللَّذَانِ، اللَّذَيْنِ، الَّذِيْنَ، الَّتِيْ، اللَّتَانِ، اللَّتَيْنِ، اللَّاتِيْ، اللّٰوْتِيْ، ومَا، مَنْ، وَأَيٌّ، وَ أَيَّةٌ والف لام بمعنٰى الَّذِي كوم چه په اسم فاعل او اسم مفعول داخل وي لكه الضَّارِبُ، الْمَضْرُوْبُ ذو بمعنٰى الَّذِي په لغت دَ بنو طے، مثال: جَاءَنِيْ ذُوْ ضَرَبَكَ.

تفصيل: الَّذِي اسم موصول دَ واحد مذكر دَ پاره راځي.

اللَّذَانِ، اللَّذَيْنِ دَ تثنيه مذكر لپاره راځي، اللَّذَانِ په حالت رفعي كښې او اللَّذَيْنِ په حالت نصبي او جري كښې.

الَّذِيْنَ: دَ جمع مذكر د پاره راځي.

الَّتِيْ: دَ واحد مؤنث دَ پاره راځي.
اللَّتَانِ، اللَّتَيْنِ: دَ تثنيه مؤنث دَ پاره راځي، اللَّتَانِ په حالت رفعي کښې او اللَّتَينِ په حالت نصبي او جري کښې.
اللَّاتِي، اللّوٰتِيْ: دَ جمع مؤنث دَ پاره راځي.
مَا و مَنْ: دَ شپږ صيغو دَ پاره راځي، واحد ، تثنيه، جمع، مذکر ومؤنث.
خلاصه: مَا او مَنْ عام دي، ليکن معنوي فرق پکښې شته، مَن اکثر دَ ذوي العقول دَ پاره او مَا اکثر دَ غير ذوي العقول دَ پاره استعماليږي، ليکن کله نا کله د يو بل لپاره هم استعماليږي، مثال: وَمَا مِنْ دَآبَةٍ.
الف لام موصول دَ پاره شرائط: (1) چه کله الف لام موصولي وي نو مدخول به ئې اسم فاعل يا اسم مفعول وي، (2) په ټولو صيغو کښې به الف لام يو شان ته استعماليږي، (3) او څنګه چه اسم فاعل او اسم مفعول وي نو ترجمه به هم هغسې وي، (4) او عائد به ئې په اسم فاعل او مفعول کښې مستتر وي، لکه الضَّارِبُ بمعنٰى الَّذِي ضرَب، الضَّارِبَانِ بمعنٰى اللَّذَانِ ضَرَبَا، الضَّارِبَةُ بمعنٰى اَلَّتِيْ ضَرَبَتْ، الضَّارِبَتَانِ په معنٰى دَ اللَّتَانِ ضَرَبَتَا عَلى هذا القياس.
(2)الف لام به عهد خارجي نه وي، (3) اسم فاعل او اسم مفعول کښې به دَ تجدّد او حدوث معنٰى وي دَ دوام او استمرار معنٰى به پکښې نه وي، ورنه بيا به صفت مشبه وي او په صفت مشبه باندے الف لام موصولي نه داخليږي.
خلاف په کښې ثابت دے ابن مالک اشموني لره هغه وائي چه داخليږي.
فائده: دا خبره په ذهن کښې کيده چه اختصاص دَ جانب واحده نه دے، يعني دَ الف لام موصولي دَ پاره اسم فاعل او اسم مفعول ضروري دے ليکن دَ اسم فاعل او اسم مفعول هر الف لام موصولي نه وي.

ذو بمعنٰی الَّذِي: په لغت دَ بني طے کښ، جَاءَ نِيْ ذُو ضَرَبَكَ.

ذو په دو قسمه دے: ذو بمعنٰی صاحب، دا همیشه معرب وي، ذو بمعنٰی الَّذِي او دا همیشه مبني وي.

فرق: د ذو موصولي مدخول به همیشه جمله وي، جاءَنِيْ ذُوْ ضَرَبَكَ.

دَ ذو صاحبي مدخول به مفرد وي، مثال: جَاءَنِيْ ذُومالٍ.

او دَ دے بیان به په اسمائے ستّه مکبّره کښ راشي.

## بدانکه أَيٌّ وأَيَّةٌ معرب است

په دے عبارت سره مصنفؒ دَ یو وهم ازاله کوي.

سوال: سوال دا وارے دیږي چه مصنفؒ بحث دَ مبنیات شروع کړے وو او په درمیان کښ وائي چه أَيٌّ و أَيَّةٌ معرب دي؟

جواب: دَ أَيٌّ او أَيَّةٌ تذکره چونکه په اسمائے موصوله کښ ده نو دَ طالب العلم ذهن کښ به دا راځي چه دا به په هر حال کښ مبني وي، نو مصنفؒ دغه وهم ختم کړو چه په هر حالت کښ به مبني نه وي، بلکه بعض حالات کښ به معرب او بعض کښ به مبني وي.

فائده: دَ أَيٌّ، أَيَّةٌ څلور حالات دي: (1) چه دواړه مضاف وي، او صدر صله ئې مذکور وي أَيُّهُمْ هُوَ قَائِمٌ.

(2) چه مضاف نه وي او صدر صله ئې مذکور وي، أَيٌّ هُوَ قَائِمٌ.

(3) چه نه مضاف وي او نه ئې صدر صله مذکور وي أَيٌّ قَائِمٌ.

په دے درې واړه صورتونو کښ به معرب وي

(4) چه مضاف وي او صدر صله ئې مذکور نه وي أَيُّهُم قَائِمٌ.

په دے صورت کښ به مبني وي.

فائده: کله نه کله أَيٌّ و أَيَّةٌ دَ حرف ندا او منادٰی په درمیان کښ دَ فصل دَ

پاره راوړلے شي په مذکر کښې أَيٌّ، مثال: يَا أَيُّهَا الرَّجُلُ. او په مؤنث کښې أَيَّةٌ، مثال: يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ.

فائده: يا اسم اشاره راوړل ضروري دي، مثال: يَا هذا الرجل.

فائده: دَ اسم موصول په صله کښې کله نا کله ضمير محذوف وي خاص طور باندے چه کله ضمير منصوب متصل وي، مثال: جَاءَ مَنْ ضَرَبْتُ اصل کښې جَاءَ مَنْ ضَرَبْتُهُ.

ترکيب: جَاءَنِي الَّذِيْ ضَرَبَكَ: جَاءَ فعل نون وقايه، ي ضمير مفعول به مقدم، الّذي اسم موصول، ضرب فعل هو ضمير مستتر ئې فاعل، ک ضمير مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل، مفعول به نه جمله فعليه خبريه جوړيدو سره دا صله دَ موصول، موصول سره دَ خپلے صله نه دا فاعل دَ جَاء لپاره، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه.

فائده: دَ اسمائے موصوله دَ مبني کيدلو وجه: اسمائے موصوله ځکه مبني دي چه په مبني الأصل کښې ئې دَ حروف سره مشابهت دے په احتياج کښې، څنګه چه دَ حروف معنٰى په ذهن کښې نه راځي بغير دَ دويمے کلمے دَ ملاؤيدو نه نو دغسے دَ اسمائے موصولات معنٰى په ذهن کښې نه راځي بغير دَ صله نه.

فائده: صله او دَ صله يو جزء په اسم موصول باندے مقدم کيدلے نشي.

## تمرين(7)

اسم موصول تلاش کړئ او ترجمه وکړئ

تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ، سَلِّمْ عَلَى مَنْ لَقِيْتَه، اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا لَهُمُ الْجَنَّةُ، النِّسَاءُ الّتِيْ فِي الْبُيُوْتِ صَالِحَاتٌ، جَاءَنِيْ ذُوْقَامَ، جَلَسَتِ الضَّارِبَاتُ، أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى

الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا، أَعْجَبَنِيْ مَا اشْتَرِيْتُهُنَّ، غَابَ الضَّارِبَانِ، المَضْرُوْبُ غُلامُه زَيْدٌ، رَأَيْتُ الَّذِيْنَ تَذَكَّرْتُهُمْ، لَا أَتْرُكُ مَنْ يُّؤْذِيْكَ، جَاءَنِي الْمَأْخُوْذُ اِبْنُه، هذَا الرَّجُلُ ذُوْ مَدَحَكَ، مَرَرْتُ بِاللَّتَيْنِ شِئْتُهُمَا، جَاءَ الَّذِيْنَ أَرَدْتَّهُمْ، الطِّفْلَانِ اللَّذانِ فِي الْمَكْتَبِ صَالِحَانِ، يَخْلُقُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ.

## د اسم غیر متمکن خلورم قسم اسمائے افعال

دَ اسمائے افعال تعریف: چه دَ وضعي په اعتبار سره خو اسماء وي لیکن په کلام عرب کښې دَ فعل دَ معنٰی دَ پاره استعمال کړے شوے وي، مثال: رُوَيْدَ بمعنٰی أَمْهِلْ.

وجه تسمیه: چونکه دَ ذات په اعتبار سره اسماء دي او دَ معنٰی په اعتبار سره افعال دي نو ځکه ورته اسمائے افعال وائي.

فائده: اسمائے افعال دَ فعل په معنٰی خو دي لیکن دَ ذات په اعتبار سره افعال نه دي بلکه اسماء دي.

سوال: اسماء ولې دي؟

جواب: اولنے دلیل: چه اسمائے افعال دَ فعل علامت نه قبلوي مثلاً قَدْ او تِ وغیره او جوازم او نواصب وغیره، لهذا اسماء دي.

دویم دلیل: چه دَ دے اوزان او دَ فعل اوزان د یو بل نه مختلف دي، لهذا اسماء دي.

دریم دلیل: بعض اسمائے افعال چه نکره وي نوپه هغے باندے تنوین تنکیر راځي، او دا دلیل دَ دے خبرے دے چه اسماء دي افعال نه دي ځکه چه تنوین په اسم راځي.

## وآن بردو قسم است

## داسمائے افعال قسمونه

اسمائے افعال په دوه قسمه دي: (1) بعض هغه اسماء دي چه دَ امر حاضر په معنٰى وي، لكه رُوَيْدَ زَيْدًا بمعنٰى أَمْهِلْ زَيْدًا، بَلْهَ بمعنٰى دَعْ، حَيَّهَلْ او هَلُمَّ بمعنٰى اِيْتِ، مثال: حَيَّ عَلَى الصلوٰة أَيْ اِيْتِ إِلَى الصَّلوٰة، دُوْنَكَ بمعنٰى خُذْ، هَا بمعنٰى خُذْ، عَليك بمعنٰى اَلْزِمْ، آمين بمعنٰى اِسْتَجِبْ، صَهْ بمعنٰى اُسْكُتْ، مَهْ بمعنٰى اُكْفُفْ، قَطُّ بمعنٰى اِنْتَهِ.

ترکيب: بَلْهَ زَيْدًا: بَلْهَ اسم فعل بمعنٰى دَعْ، دَعْ صيغه واحد مذكر امر حاضر معلوم، أَنْتَ ضمير مستتر ئې فاعل، زيدًا مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به نه جمله انشائيه امريه.

هغه اسمائے افعال چه دَ فعل ماضي په معنٰى وى: هَيْهَاتَ بمعنٰى بَعُدَ، هيهات يَوْمُ العِيْدِ أَيْ بَعُدَ يَومُ العِيْدِ. سَرْعَانَ بمعنٰى سَرَعَ، شَتَّانَ بمعنى اِفْتَرَقَ. لهذا دَ شَتَّانَ دَ پاره به دوه فاعله راځي او په درميان کښې به ئې واؤ حرف عطف وي، لكه شَتَّانَ زَيْدٌ وَعَمْرٌو أَيْ اِفْتَرَقَ زَيْدٌ وَعَمْرٌو.

بل هغه اسمائے افعال چه په معنٰى دَ مضارع دي او دا كثير هم دي. لكه: بَخٍّ بَخٍّ بمعنٰى أَتَعَجَّبُ.

ترکيب: شَتَّانَ زيدٌ وعمرٌو: شتَّان اسم فعل بمعنٰى افترق، زيدٌ معطوف عليه، واؤ حرف عطف، عمرٌو معطوف، معطوف سره دَ معطوف عليه فاعل شو دَ افترق لپاره، فعل سره دَ فاعل نه جمله فعليه خبريه.

فائده: اسمائے افعال سماعي جامده دي، كمے او زيادت پکښې ممنوع دے، بعض پکښې مبني بر فتحه دي، لكه: شتَّانَ، هَيْهَاتَ، بعض پکښې مبني بر كسره دي، لكه: حَمَادِ، قَرَاءِ، بعض پکښې مبني بر ضمه دي، لكه: أُهُ.

بعض پکښې مبني برسکون دي، لکه: مَهْ، صَهْ، او دَ بعض په آخر کښې کافِ سَماعي ملاحق کيږي، لکه: رُوَيْدَك.
مبني کيدلو وجه:بعض دَ ماضي او بعض دَ امر په معنٰى دى او ماضي او امر دواړه مبني دي نو لهذا دا هم مبني شو.

## داسم غير متمکن پنځم قسم اسمائے اصوات

اسمائے اصوات: دادي: اح اح واُفِّ وبَخَّ ونَخَّ وغَاقَ
دَ اسمائے اصوات متعلق درے خبرے يادول ضروري دي:
(1) دَ اسمائے اصوات تعريف: چه دَ انسان دَ خُله نه دَ غم، خوشالي يا دَ تکليف په وخت کښې يا ځنارو ته آواز کولو يا دَ ځناورو آواز نقل کولو په وخت وځي (فاحفَظْ هذَا لأنَّه جامع ومانع)
(2) اسمائے اصوات کوم کوم دي؟
جواب: اسمائے اصوات دا دي: اُحْ اُحْ دَ ټوخي په وخت کښې وځي. اُف چه دَ درد په وخت کښې وځي. نَخْ دَ اوښ کيناولو په وخت، غَاقَ کارغه ته آواز کولو په وخت، هَلَّه دَ آس تيزاولو په وخت، طَقْ طَقْ دَ کانړي ارغړيدلو په وخت.
(3) اسمائے اصوات مبني کيدلو وجه:دا په ترکيب کښې نه واقع کيږي ځکه مبني دي او که چرته واقع شي نو مراد ترينه لفظ وي.

## داسم غير متمکن شپږم قسم اسمائے ظروف

ظروف: جمع دَ ظرف ده په معنٰى دَ برتن (لوښي) سره.
او په اصطلاح کښې مَا وَقَع فِعْلُ الْفَاعِلِ فِيْهِ چه په هغې کښې دَ فاعل فعل واقع وي.

دا په دوه قسمه دے: (1) ظرف زمان، (2) ظرف مکان.

اسمائے ظروف زمان: چه دَ وخت په معنٰی دلالت کوي.

اسمائے ظروف مکان: چه په مکان دلالت کوي. دَ دوارو مثالونه: وَقَفَتِ السَّيَّارَةُ صَبَاحًا أَمَامَ الْمَدْرَسَةِ.

اسمائے ظروف زمان: إِذْ، إِذَا، مَتٰى، كَيْفَ، أَيَّانَ، أَمْسِ، مُذْ، مُنْذُ، قَطُّ، عَوْضُ، قَبْلُ، بَعْدُ، حَيْثُ، تَحْتُ.

دَ اسمائے ظروف زمان تفصیل: (1) إِذْ په ماضي داخليږي، په معنٰی "دَ کوم وخت" صَلَّيْتُ إِذْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ.

(2) إِذَا په مضارع داخليږي، په معنٰی "دَ کوم وخت" آتِيْكَ إِذَا تَطْلُعُ الشَّمْسُ.

إِذَا کله په ماضي هم داخليږي خو په معنٰی به دَ مضارع سره وي، لکه: إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ.

فائده: إِذَا کله دَ شرط په معنٰی وي.

دَ شرط تعریف: چه دَ یوے جملے مضمون دَ بلے جملے په مضمون باندي مرتب وي، او کله چه إِذَا دَ شرط لپاره وي نو دَ إِذَا نه بعد به دوه جملے وي، اولنۍ به ورلره شرط او دویمه به ورلره جزاء وي، لکه: إِذَا نَصَرْتَ نَصَرْتُ.

نوټ: کله چه إِذَا دَ شرط دَ پاره وي نو روستو ترینه جمله فعلیه راوړل بهتر دي، ځکه چه دَ فعل دَ شرط سره مناسبت وي او جمله اسمیه ذکر کول هم جائز دي، ځکه چه دَ إِذَا وضع دَ شرط لپاره نده شوي. مثال: آتِيْكَ إِذَا الشَّمْسُ طَلَعَتْ.

فائده: او کله نا کله إِذَا دَ اچانک په معنٰی راځي، او دیته إِذَا مفاجاتیه وائي، خَرَجْتُ فَإِذَا السَّبُعُ وَاقِفٌ. إِذَا چه کله مفاجاتیه وي نو روستو ترینه مبتداء ذکر کول بهتر دي چه فرق راشي په إِذَا شرطیه او إِذَا مفاجاتیه کښ

(3) مَتٰى: دَ اسفتهام په معنٰی راځي. متٰى تُسَافِرُ، او متٰى کله دَ شرط لپاره هم

راځي متٰى تَصُمْ أَصُمْ، مَتٰى تَذْهَبْ أَذْهَبْ. مَتٰى، أَيْنَ، أَنّٰى چه کله دَ استفهام لپاره وي نو بيا ترينه ما بعد صرف يوه جمله وي، مثالونه: مَتٰى تَذْهَبُ، أَيْنَ تَجْلِسُ، أَنّٰى تَقْعُدُ.

(4) کيف: دَ حال دَ معلوميدلو لپاره راځي، کَيْفَ حَالُكَ.

دَ امام سيبويه‌رحمه‌الله په نزد دا ظرف زمان دے. او عند الجمهور صرف دَ استفهام دَ پاره راځي او مجازاً ورته ظرف وائي.

کيف: کله حالِ مقدم واقع کيږي، مثال: کيف تکفرون باللهِ. او کله مفعول به مقدم واقع کيږي، مثال: کَيْفَ جِئْتَ، او کله خبر مقدم واقع کيږي، مثال: کَيْفَ أَنْتَ.

(5) أَيَّان: دَ "کله" په معنٰى راځي، او په دې سره دَ زمانه استقبال تعين مطلوب وي، لکه: أَيَّانَ يَوْمُ الْفَصْلِ، او کله دَ شرط لپاره راځي، مثال: أَيَّانَ تَجْتَهِدْ أَجْتَهِدْ.

فائده: أيَّانَ او متٰى استفهاميه کښې فرق: أَيَّانَ صرف دَ زمانه استقبال او امور عظيمه دَ پاره راځي، مثال: أَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ او دَ امور حقيره دَ پاره نه راځي، داسے نشي وئيلے أَيَّانَ يطِيْرُ الذّبابُ.

او متٰى عام ده، دَ امور عظيمه او حقيره دواړو لپاره راځي، او دَ زمانه ماضي ومستقبل دواړو لپاره راځي. مَتٰى السَّاعَةُ او متٰى يطيرُ الذباب دواړه وئيل جائز دي.

(6) أمس: دَ گزشته ورځ لپاره راځي، لکه: رَأَيْتُه أَمْسِ.

فائده: چه کله په أَمْسِ الف لام داخل شي نو بيا به معرب وي (زاد الفقير صفحه 173)

(7) مُذْ او مُنْذ: دا دواړه دَ ابتداء مدت او جميع مدت لپاره راځي.

چه په دے دواړو کښې دَ متيٰ دَ جواب ورکولو صلاحيت پيدا شي نو بيا به دَ

اول مدت لپاره راځي.

مثال: مَتٰى مَا رَأَيْتَ زَيْدًا؟ جواب: مَا رَأَيْتُه مُذْ يَوْمُ الْجُمُعَةِ.

او چه کله پکښې دَ کَم جواب ورکولو صلاحيت پيدا شي نو بيا به دَ جميع مدت لپاره راځي.

مثال: کَمْ مَا رَأَيْتَ زَيْدًا؟ جواب: مَا رَأَيْتُه مُنْذ يَوْمَانِ.

نوټ: مُذْ او مُنْذ کښې ډير اختلاف دے، چه اسماء دي او که حروف.

فائده: چه کله دَ ابتداء مدت لپاره وي نو په هغه وخت کښې ترينه بعد مفرد معرفه بغير دَ فصل نه واقع وي ځکه اول مدت متعين څيز وي، لکه: مَا رَأَيْته مُذْ يوم الجمعة. او چه کله دَ جميع مدت لپاره راځي، نو بيا به ترينه دَ عدد مجموعه متصل واقع وي، خواه که مفرد ،تثنيه او که جمع وي، لکه: مَا رأَيْته مذ يومان.

فائده: مُذ او مُنذ په دوه قسمه استعماليږي: بطور اسم ظرف، نو په دے وخت کښې به ئې مابعد مرفوع وي، مثال: حَضَرتُ مُذْ يَوْمَان.

ترکيب: حضرتُ مذ يومان: حضَرْتُ فعل بفاعل، مُذ مبتداء او يومان خبر، يا مذ خبر مقدم او يومان مبتداء مؤخره، ليکن شيخ جامي‌رحمه الله پرې اعتراض کړے دے چه دَ معرفه په مبتداء او دَ نکره په خبر جوړيدو کښې څه مانع نشته نو اولنے ترکيب وکړه.

که بطور جاره وه نو ما بعد به ئې مجرور وي، ما حضرتُ مذ يومين، او ترکيب آسان دے.

(8) قَطُّ: په معنٰى دَ "کله" سره او ماضي منفي تاکيد لپاره راځي، مَا رأَيْته قَطُّ.

(9) عوض: په معنٰى دَ "هرګز" سره، دَ مضارع منفي تاکيد لپاره راځي، لَا أَظْلِمُ عَوْضُ.

فائده: عَوض دَ قَطُّ مقابل دے، دواړه دَ استغراق لپاره راځي. او فرق ئې واضح دے، يو دَ ماضي تاکيد او بل دَ مضارع تاکيد لپاره راځي.
او عَوْضُ مبني برضمه مشهور دے.
فائده: که عَوض مضاف وه نو بيا به معرب وي (زاد الفقير صفحه175)
(10، 11) قَبْلُ او بعدُ: دَ قبلُ او بعدُ څلور صورتونه دي:
(1) چه دا دواړه مضاف نه وي، مِنْ قَبْلِ وَمِنْ بَعْدِ.
(2) چه دا دواړه مضاف وي، مِنْ قَبْلِكَ وَمِنْ بَعْدِكَ.
(3) چه دا دواړه مضاف وي او مضاف اليه ئې مذکور نه وي او دَ متکلم په ذهن کښې هم موجود نه وي، نسيًا منسًا وی، ربَّ بَعْدٍ كَانَ خَيْرًا مِنْ قَبْلٍ.
(4) چه دا دواړه مضاف وي او مضاف اليه ئې محذوف منوي وي يعني په لفظونو کښې نه وي او دَ متکلم په ذهن کښې موجود وي، مثال: لِلّٰهِ الْأَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ، اصل کښې لِلّٰهِ الْأَمْرُ مِنْ قَبْلِ كُلِّ شَيْءٍ وَمِنْ بَعْدِ كُلِّ شَيْءٍ.
حکم: په اولني درے صورتونو کښې معرب دي او په آخري کښې مبني بر ضمه دي.
دَ ظروف زمانو ذکر ختم شو اوس مصنف رحمه الله ظروف مکان ذکر کوي.
ظروف مکان: حَيْثُ، قُدَّامُ، تَحْتُ، فَوْقُ.
حَيْثُ: دا ظروف مکان بمعنٰی "په کوم ځائے کښې" مثال: إِجْلِسْ حَيْثُ جَلَسَ زَيْدٌ.
فائده: حَيْثُ به مبني برضمه وي او هميشه دَ جمله طرف ته مضاف وي، مثال: سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ، او دَ مفرد طرف ته ئې اضافت قليل دے.

كه چرته مفرد طرف ته مضاف وي نو په مبني او معرب كيدلو كښې ئې اختلاف دے. بعض حضرات فرمائي بيا به معرب وي ځكه علت بناء اضافت الي الجمله وه او هغه ختم شو په اضافت الي المفرد سره نو معرب شو، بعض حضرات فرمائي كه مفرد ته اضافت وشي بيا به هم مبني وي ځكه اضافت الي المفرد شاذ دے څه اعتبار ئې نشته، چرته چې وي مبني به وي په ضمه سره.

قُدّام: په معنٰى دَ "مخكښې" سره، مثال: إِمْشِ قُدَّامَ بَكْرٍ.

تَحْتُ: په معنٰى دَ "لاندے" سره، مثال: قَعَدْتُّ تَحْتَ الشَّجَرَةِ.

فوق: په معنٰى دَ "پاسه" سره، مثال: جَلَسْتُ فَوْقَ السَّقْفِ.

## وقتيكه مضاف باشد إلى آخره

دَ دے عبارت تعلق دَ قُدَّام، تَحْت، فَوقُ سره دے.

حكم: ئې دَ قَبْلُ او بَعْدُ پشانته دے، يعني څلور حالات ئې دي، په درے حالاتو كښې معرب او په يو حالت كښې به مبني وي.

اسمائے ظروف مبني كيدلو وجه: قدّام، تحت، فوق، قبل او بعد دا ځكه مبني دي چه دَ مضاف اليه محذوف منوي په صورت كښې ئې دَ حروف سره مشابهت دے په احتياج كښې.

بقيه اسمائے ظروف ځكه مبني دي چه بعض دَ اصل وضع په اعتبار سره دَ حروف سره مشابهت لري، مثال: إذْ، او بعض دَ حروف استفهام سره مشابهت لري، مثال: كيف، أيّان، او بعض دَ حروف شرط سره مشابهت لري، مثال: إذا، متٰى، او بعض دَ لام استغراق سره مشابهت لري، مثال: عوض، قطُّ، او بعض دَ حروف جاره سره مشابهت لري، مثال: مُذ، مُنْذ.

# د اسم غیر متمکن اووم قسم اسمائے کنایات

اسمائے کنایات : کم وکذا و کیت وذیت

کنایات جمع دَ کنایةٌ ده په معنٰی دَ اشاره کولو سره.

او په اصطلاح کښې چه په مبهم خبره یا په مبهم عدد باندے دلالت وکړي،

دویم تعریف: چه معنٰی مرادي ئې پټه وي.

فائده: که چرته په دي سره مبهم خبرے طرف ته اشاره وکړي نو دیته کنایه از حدیث وائي، كَيْتَ وَذَيْتَ، او دا دواړه اکثر په واؤ عطف سره مکرر استعمالیږي، سَمِعْتُ كَيْتَ وَكَيْتَ، قُلْتُ لَه ذَيْتَ وَذَيْتَ.

او که چرته په دي سره مبهم عدد طرف ته اشاره وکړي نو دیته کنایة از عدد وائي، لکه كَمْ او كذَا.

فائده: كَمْ: په دوه قسمه دے: (1)کم استفهامیه، (2)کم خبریه.

دَ کم استفهامیه تمیز به منصوب وي، كَمْ دِرْهَمًا عِنْدَكَ.

دَ کم خبریه تمیز به مجرور وي، كَمْ مالٍ أَنْفَقْتُه.

او كَذا صرف خبریه راځي، عِنْدِيْ كَذَا دِرْهَمًا.

فائده: اسمائے کنایات نه مراد هغه دي چه هغه مبني وي او کوم چه معرب دي هغه مراد نه دي.

دَ مبني کیدلو وجه: کَم استفهامیه دَ معنی په اعتبار سره دَ همزه استفهامیه سره مشابهت لري او کم خبریه په کم استفهامیه باندے محمول دے، کذا دَ "ک" تشبیه او دَ "ذا"اسم اشاره نه مرکب دے او دواړه جزءونه په خپل ځائے مبني دي نو دَ مرکب ئې هم دغه حکم دے، ترکیبي معنٰی باقي نه ده بلکه بمنزلهٔ کلمه واحده ده.

اسمائے کنایات په احتیاج کښې دَ حروف سره مشابهت لري.

(8) مرکب بنائي: تفصیل ئې مخکښې په مرکب غیر مفید کښې ذکر شوے

دے دوباره ضرورت نشته، أُنْظُرْ هُنَاكَ.

## تمرين (8)

اسمائے افعال او اسمائے ظروف پکښې تلاش کړې او ترجمه هم وکړې.

رُوَيْدَ خَالِدًا، أَمَرْتُكَ إِذْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ، مَهْ عَنِ الضَّرْبِ، لَا تَضْرِبْهُ عُوْضُ، هَيْهَاتَ مَحْمُوْدٌ، مَا فَعَلْتُهُ قَطُّ، عَلَيْكَ حَامِدًا، أَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ، عَلَيْكُمْ بِا الصِّدْقِ، قَرَأْتْ هِنْدٌ تَحْتَ الشَّجَرَةِ، هَا زَيْدًا، كَيْفَ كُنْتِ، جِئْتُكَ مِنْ قَبْلٍ وَمِنْ بَعْدٍ، عَلَيْكُمْ بِالسُّنَّةِ، لَا تَمْشِ قُدَّامَ مُعَلِّمٍ، إِذَا وَعَظْتَ وَعَظْتُ، دُوْنَكَ عَمْرًوا، آمِيْنَ هذَا الدُّعَاءِ، مَتٰى سَافَرْتَ، ضَعْ هذَا الكتابَ فَوْقَ الْمِنْضَدَة، إِجْلِسْ حَيْثُ جَلَسَ زَيْدٌ، اَلْيَوْمَ أُبَدِّلُ ثِيَابِيْ، جِئْتُكَ مِنْ بَعْدِ بَكْرٍ، مَتٰى تَفْتَحُ الْمَدْرَسَةَ، لِلّٰهِ الْأَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ، جَلَسَتِ الْهِرَّةُ فَوْقَ الْمَائِدَةِ.

## فصل بدانکه اسم بر دو ضرب است

## معرفه و نکره

ضرْب: دَ ضَرَبَ څو معنی دي: وهل، بیان کول، ظاهر کول، یوځائے کول، قِسم، دلته مراد قِسم دے.

مصنف رحمه الله دَ تقسیم دَ معرب او مبني نه فارغ شو، او دَ اسم غیر متمکن دَ بیان نه فارغ شو اوس به دَ اسم متمکن تفصیل ذکر کوي نو دَ هغے نه مخکښې دَ تمهید په طور باندے دَ اسم یو څو تقسیمات ذکر کوي ځکه چه په شپاړلس اقسام کښې ورته ضرورت دے، نو اوس دلته دَ اسم تقسیم

کوي باعتبار عموم او خصوص سره، او اسم باعتبار دَ عموم او خصوص سره په دوه قسمه دے: (1) معرفه، (2) نکره.

معرفه: فِي اللُّغَةِ پيژندل.

فِي الاصطلاح: مَا وُضِعَ لِشَيْءٍ مُعَيِّنٍ، چه وضع شوے وي لپاره دَ معين شئ لکه زَيْدٌ زيد دَ ذاتِ زيد لپاره وضع شوے دے.

## وآن بر هفت نوع است

## معرفه اقسام

او معرفه په أووه قسمه ده، اوس مصنفعليه الرحمة دَ معرفه اقسام ذکر کوي: (1)مضمرات، (2) اعلام، (3) اسمائے موصولات، (4) اسمائے اشارات، (5) معرفه بالف لام، (6) معرفه بالنداء، (7) هر هغه اسم چه په مذکوره شپږ ځيزونو کښې دَ معرفه بالنداء نه علاوه باقي پنځو ته مضاف وي:

چه ضمير ته مضاف وي لکه غُلامُه، چه عَلَم ته مضاف وي لکه غُلام زيد، چه اسم اشاره ته مضاف وي، لکه غلام هذا، چه اسم موصول طرف ته مضاف وي، لکه غلام الذي عندي،چه الف لام والا اسم ته مضاف وي غلام الرَّجُل په دي مثال کښې غلام نکره وه چه معرف باللام طرف ته مضاف شو نو معرفه ترينه جوړه شوه.

فائده: سوال: ضمائر خو په معين ځيز باندے دلالت نه کوي نو څنګه معرفه ده؟

جواب: ضمائر اګرچه دَ لغوي معنى په اعتبار سره په معين ځيز باندے دلالت نه کوي ليکن دَ استعمال په وخت کښې په معين ځيز باندے دلالت کوي او دا خبره دَ ضمائرو په وضع کښې ملحوظه ده نو ځکه معرفه دي.

فائده: په ضمائرو کښې دَ معرفه په اعتبار سره اول دَ متکلم بیا دَ مخاطب بیا دَ غائب په ضمائرو کښې معرفه زیاته ده.

(2) أعلام: دا جمع دَ عَلَم ده او عَلَم په لغت کښې په څو معانو راځي، جهنډا، غَر، علامت، دَ قوم سردار، مناره.

او په اصطلاح کښې چه خپله مُسَمّی متعین کړي بغیر دَ خارجي قرینه نه.

دویم تعریف: علَم هغه اسم ته وائي چه هغه ئې دَ یو ذات لپاره داسې وضع کړے وي چه په دغه وخت کښې دَ بل چا لپاره نوي وضع شوي، مثال: زید، بکر.

عَلَم په درې قسم دے: لقب، کنیت، اسم.

لقب تعریف: هغه اسم علم دے چه دَ مسمّی په مدحه یا ذم دلالت وکړي، مثال: حقاني.

کنیت:هغه علم ته وائي چه په ابتداء کښې ئې اَب یا اُم وي، مثال: أبوبکر رضی الله عنه، أبو حفص رضی الله عنه، أم سلمة رضی الله عنها.

اسم: نه مراد هغه عَلَم دے چه نه لقب وي او نه کنیت وي او دا درې واړه قسمونه معرفے دي.

(3، 4) اسمائے اشارات او اسمائے موصولات تفصیل په اسم غیر متمکن کښې په تفصیل سره ذکر شوے دے، دَ اعاده ضرورت نشته.

## واین دو قسم را مبهمات گویند

دَ دے عبارت مراد دا دے چه مبهمات دَ مُبْهَمَةٌ جمع ده په معنٰی دَ پوشیده سره، نو چه دَ اسمائے اشارات سره مشار الیه او دَ اسمائے موصولات سره صله نه وي ذکر شوې نو دَ متکلم په ذهن کښې خبره پټه وي ځکه ورته مبهمات وائي.

معرفه بالنداء: هغه اسم چه نکره وي او حرف نداء پرې داخل کړي نو معرفه ترې جوړا شي، يَا رَجُلُ.

فائده: چه دَ منادٰی تعین وشي او نِدا ورته وشي نو معرفه به جوړيږي که تعين ئې نه وي شوے او نِدا ورته وشي نو بيا به نکره وي، مثلاً يو ړوند سړے آواز وکړي يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ.

معرفه بالف لام: هغه اسم چه نکره وي او الف لام پرے داخل کړے شي او معرفه ترينه جوړه کړے شي، مثال: الرَّجُلُ.

## دَ اسم دويم قسم نکره

دَ اسم دويم قسم نکره: په لغت کښې نه پيژندل، يا ناشنا.

او په اصطلاح کښې مَا وُضِعَ لَشيْءٍ غير مُعَيَّنٍ، رَجُلٌ، فَرَسٌ، اِمْرَأَةٌ. رجل هر سړي ته وائي، فرس هر آس ته وائي په معين باندے دلالت نه کوي.

فائده: (1) اسم نکره لام تعريفي قبلوي،مثال مَدِيْنَةٌ نه اَلْمَدِيْنَةُ (2)کم خبري پرے هم داخليږي، كم مالٍ أنفقتُه، (3) لا مشبه بليس دَ پاره اسم هم واقع کيږي لا رَجُلٌ قَائمًا.

فائده: نکره اصل ده ځکه چه قرينه نه غواړي او معرفه فرعه ده ځکه چه قرينه غواړي، دويم فرق: کومه نکره چه دَ معرفه ضد وي هغه به دَ اسم خاصه وي او معرفه په هر حال کښې دَ اسم خاصه ده.

## تمرين(9)

دَ معرفه او نکره نشاندهي وکړۍ او ترجمه ئې وکړۍ

أَنَا مُؤْمِنٌ، دَخَلْتُ غُرْفَةً، يَقُوْلُ الْكَافِرُ، هذَا مَاءٌ، هذَا الرَّجُلُ أَبُوْكَ، فُتِحَتِ

السَّمَاءُ، يَا خَالِدُ، أرىٰ ذُبَابَةً، غُلَامُ الَّذِيْ عِنْدَكَ ذَكِيٌّ، سُكُوْتُ الرَّجُلِ مُفِيْدٌ، أَنَا أَبُوْه، عَمُّ زَيْدٍ شَرِيْفٌ، هذِهِ أُخْتِيْ، أُحِبُّ الَّذِيْنَ يُصَدِّقُوْنَ، سَمِعَ تِلْمِيْذٌ، دَرْسًا مُفِيْدًا، فَرَّ كَلْبٌ مِنَ الْحَارِسِ، يَا اللّٰهُ، عَلِيٌّ فِي الْحَدِيْقَةِ، وَقَعَتِ الْكُرَّةُ فِي الْحَدِيْقَةِ، أَنْتِ صَالِحَةٌ، أَنْتَ تُحِبُّ الْوَطَنَ، غُلَامُ هذَا الرَّجُلِ صَالِحٌ، أَنْتُنَّ حَاضِرَاتٌ كُلُّهُنَّ.

## بدانكه اسم بر دو صنف است مذكر ومؤنث

اوس مصنفؒ دَ اسم بل تقسيم كوي په اعتبار دَ جنس سره.

دَ جنس په اعتبار سره اسم په دوه قسمه دے: (1) مذكر، (2) مؤنث.

دَ مذكر تعريف: مذكر هغه اسم ته وائي چه دَ تانيث علامت پكښې نه وي

دَ مؤنث تعريف: مؤنث هغه اسم ته وائي چه دَ تانيث علامت پكښې وي.

دَ اول مثال: رَجُلٌ، دَ دويم مثال: امْرَأَةٌ.

فائده: علامات تانيث په اسم كښې ځلور دي او په فعل كښې هم ځلور دي.

د اسم هغه دا دي:

(1) الف مقصوره مثال: حُبْلٰى، او الف مقصوره هغه الف ته وائي چه روستو ترينه همزه نه وي، او مقصوره ورته ځكه وائي چه دا دَ قصر نه دے او قصر په معنٰى دَ بند كړے شوے نو په دې هم آواز بنديږي.

(2) الف ممدوده: هغه ته وائي چه دَ الف نه بعد همزه وي او ممدوده ورته ځكه وائي چه دا دَ مد نه دے او مد په معنٰى دَ اوګدول، رابنكل، نو په دې هم آواز اوګد كيږي. مثال: حَمْرَاءُ.

فائده: چه الف مقصوره او الف ممدوده دَ كلمه په آخر كښې راشي او زائد

وي نو دَ تانيث علامات به وي.

(3) تائے ملفوظ: هغه تاء ته وائي چه په لفظونو کښې موجود وي، عَائِشَةُ.

(4) تائے مقدره: هغه تاء ته وائي چه په لفظونو کښې موجود نه وي، لکه: أَرْضٌ مؤنث دے په دليل دَ تصغير سره چه تصغير ئې أُرَيْضَةٌ راځي، او قاعده دا ده چه تصغير اشياء خپل اصل ته اړوي. نو په تصغير کښې ئې تاء موجود ده نو دا دليل دَ دے خبرے دے چه اصل کښې هم تاء موجود ده.

فائده: دَ فعل علامات تانيث:

1) تائے ساکنه، ضَرَبَتْ.
2) يائے ساکنه، تَضْرِبِيْنَ.
3) تائے مکسوره، ضَرَبْتِ.
4) نون دَ جمع مؤنث، ضَرَبْنَ.

## واين را مؤنث سَماعي گويند

## بعض اسماء چه مؤنث سماعي دي

مصنف عليه السلام يوه فائده ذکر کوي چه دَ اسم مؤنث څلورم صورت تائے مقدره ته سَماعي وائي يعني دَ دے څه قاعده او قانون مقرر نه دے بلکه دَ اهل زبان نه په سَماع (اوريدو) باندے موقوف دے،چه کوم لفظ هغوي مؤنث استعمالوي نو مؤنث به وي او که مذکر ئې استعمالوي نو مذکر به وي.

دويمه خبره: مصنف عليه السلام اجمالاً اشاره وکړه چه مؤنث په دوه قسمه دے:

(1)مؤنث قياسي، (2) مؤنث سَماعي.

مؤنث قياسي: چه دَ مؤنث علامه پکښې موجود وي، لکه امرأة.

مؤنث سماعي: چه دَ مؤنث علامه پکښې موجود نه وي بلکه دَ اهل زبان نه

اوريدلے شوے وي. مثلاً:

1) دَ ملكونو او قبيلو نومونه لكه مِصَر.
2) هغه اسماء چه دَ ښځو سره خاص وي، لكه اُمْ، أُخْت، حيض.
3) دَ انسان مكرر اعضاء لكه عَيْنٌ، أُذُنٌ. سواء دَ خَد (اننګي) نه او حاجب (روڅو) نه.
4) دَ ښځو نومونه لكه زينب، كلثوم.
5) دَ هوا نومونه لكه رِيْحٌ.
6) د حيواناتو نومونه لكه ثَعْلَبٌ، أَرْنَبٌ.
7) د شرابو نومونه لكه صوح.
8) مصنوعي اشياء لكه عصاء.
9) جمله حروف لكه إِنَّ، مِنْ إلخ.
10) حروف تهجي لكه ا،ب،ت،ث إلخ.

فائده: بعض اسماء داسې دي چه اهل عرب ئې مذكر او مؤنث استعمالوي لكه: أَرْضٌ، حَرْبٌ، خَمْرٌ، دَارٌ، رِيْحٌ، قَوْسٌ، سُوْقٌ، نَفْسٌ، سَبيْلٌ، لِسَانٌ، كَأْسٌ، نَعْلٌ، بِيْرٌ، عِيْرٌ، نَارٌ.

## بدانكه مؤنث بر دو قسم است مؤنث حقيقى او لفظى

مؤنث په دوه قسمه دے: (1) مؤنث حقيقي، (2) مؤنث لفظې.

مؤنث حقيقي: هغه ته وائي چه په مقابله كښې ئې جاندار مذكر وي، خواه كه علامت دَ تانيث پكښې وي مثال: امرأة، او كه علامت دَ تانيث پكښې نه وي مثال: أتانٌ (خره) چه حمارٌ ئې په مقابله كښې دے.

اِمْرَأَةٌ په مقابله كښې رَجُلٌ جاندار دے او ناقَةٌ په مقابله كښې جَمَلٌ.

مؤنث لفظي: هغه ته وائي چه په مقابله كښې ئې جاندار مذكر نه وي كه

علامت دَ تانيث پکښې وي او که نه وي، لکه ظلمةٌ او قُوَّةٌ اګرچه په مقابله کښې نُورٌ او ضُعفٌ شته ليکن جاندار نه دي.

## بدانکه اسم بر سه صنف است واحد ومثنى وجمع

## دَ اسم اقسام باعتبار تعداد

اوس مصنف عليه الرحمه اسم تقسيموي په اعتبار دَ تعداد سره او اسم په اعتبار دَ تعداد سره په درې قسمه دے: واحد، تثنيه، جمع

د واحد تعريف: واحد هغه اسم ته وائي چه په يو دلالت کوي لکه رَجُلٌ.

د تثنيه تعريف: تثنيه هغه اسم ته وائي چه په دوو دلالت کوي لکه رَجُلَانِ.

فائده: تثنيه دَ جوړيدلو طريقه: دَ واحد په آخر کښې به الف ماقبل مفتوح او نون مکسور په حالت رفعي کښې او ياء ماقبل مفتوح او نون مکسور په حالت نصبي او جري کښې وولګوي، مثال: رَجُلَانِ، رَجُلَينِ دَ رَجُل نه.

فائده: دَ تثنيه حقيقي لپاره درې شرطونه دي:

1) دَ مفرد معنٰى به پکښې وي.
2) الف او ياء ماقبل مفتوح او نون مکسور به وي.
3) په دوه باندے به دلالت کوي، لکه رَجُلانِ، رَجُلَينِ.

که په دے کښې يو شرط هم کم وو نو تثنيه حقيقي به نه وي.

اِثْنَانِ او اِثْنَتَانِ: ته مشابه بالتثنيه وائي ځکه يو شرط پکښې نشته چه مفرد ورلره نشته.

كِلَا او كِلْتَا: ته ملحق بالتثنيه وائي ځکه چه دوه شرطونه پکښې نشته يو مفرد ورلره نشته، دويم الف او ياء ماقبل مفتوح نون مکسور نشته.

دَ جمع تعريف: جمع هغه اسم ته وائي چه دَ دوه نه په بره باندے دلالت کوي

لکه رِجَالٌ، مُسلِمُونَ، أَطفَالٌ.

دَ جمع دَ جوړاولو طريقه دا ده چه په مفرد کښ تغير وکړي او دا تغير په دوه قسمه دے: (1) تغير لفظي، (2) تغير تقديري.

تغير لفظي په درے قسمه دے: (1) په زيادت دَ حرف سره لکه رِجَالٌ چه دَ رَجُلٌ نه، (2) په نقصان دَ حرف سره لکه كُتُبٌ چه دَ كِتَاب نه، (3) په لحوق دَ علامے سره لکه مُسْلِمُوْنَ چه دَ مُسْلِمٌ نه جوړ دے.

تغير تقديري: مطلب دا دے چه واحد او جمع کښ فرق اعتباري وي په ليکلو کښ يو شانته وي، دَ فُلْكٌ جمع فُلْكٌ ده چه دواړه يو شانته دي، خو فرق اعتباري دے، که فُلْكٌ دَ قُفْلٌ (يوه تاله) په وزن شي نو مفرد دے او که فُلْكٌ دَ اُسْدٌ په وزن شي نو بيا جمع ده، ډيرے کشتئ.

## تمرين (10)

مذکر ومؤنث، واحد، تثنيه او دَ جمع علامات تلاش کړئ او ترجمه وکړئ

هُوَ قَائِمٌ، مَا رَأَيْتُ مُوْسٰى، السِّتَارَةُ حَمْرَآءُ، أَنْتِ فَاطِمَةُ، طَارَتِ الْحَمَامَتَانِ مِنَ الْقَفْصِ، دَعَوْتُ الرَّجُلَيْنِ، الشَّاةُ كَبِيْرَةٌ، أَكْرَمْتُ الْمُعَلِّمِيْنَ، تَشْتَرِي سَلْمٰى فَاكِهَةً، سَمِعَتِ الْمُسْلِمَاتُ خُطْبَةَ الْإِمَامِ، حَضَرَ الْمُهَنْدِسُ، أَقْوَالٌ حَضَرَ الْعَامِلُوْنَ، أَمْشِيْ فِي الْأَرْضِ، تَعِبَ الْعَامِلَانِ، تَطْلُعُ الشَّمْسُ، التَّاجِرُ أَمِيْنٌ، وَصَلْنَا إِلَى الْقُرٰى، اِسْمُ الْقُرْآنِ اَلذِّكْرٰى، هِيَ بَقَرَةٌ صَفْرَآء، التِّلْمِيْذَانِ مُهْمَلَانِ، إِلَى الصَّخْرَة.

## بدانکه جمع باعتبار لفظ بردو قسم است جمع تکسیر وتصحیح

## جمع سالم ومکسر

جمع تکسیر: تکسیر دَ باب تفعیل نه مصدر دے په معنٰی دَ ماتولو سره او په اصطلاح کښې هغه ته وائي چه دَ واحد وزن او شکل صورت پکښې سلامت نه وي، لکه رِجَالٌ، مَسَاجِدُ چه دَ مَسْجِدٌ او رَجُلٌ جمع ده.

وأبنية: جمع دَ بناءٌ ده په معنٰی دَ وزن نو دَ أبنيةٌ معنٰی اوزان دي.

فائده: اسم په درې قسمه دے: ثلاثي، رباعي، خماسي.

تعريفونه ئې په صرفو کښې ذکر شوے دي که جمع دَ ثلاثي وه نو دَ دے وزن مقرر ندے بلکه په سَماع باندے موقوف دي، او که جمع دَ رباعي يا خماسي وي نو جمع تکسير به ئې دَ فَعَالِلُ په وزن راځي لکه جَعْفَرٌ نه جَعَافِرُ دَ خماسي مثال: جَحْمَرِشٌ نه جَحَامِرُ، ليکن دَ خماسي نه به دا وزن په هغه وخت کښې وي چه پنځم حرف اصلي حذف شي.

جمع تصحيح: دا مصدر دَ باب تفعيل نه دے په معنٰی دَ درست کولو سره.

او په اصطلاح کښې چه دَ واحد بناء پکښې برقرار وي لکه مُسْلِمٌ نه مُسْلِمُوْنَ.

## وآن بر دو قسم است جمع مذکر سالم ومؤنث سالم

جمع مذکر سالم: هغه ته وائي چه په آخر کښې واو ماقبل مضموم او نون مفتوح وي په حالت رفعي کښې لکه مُسْلِمُوْنَ، او ياء ماقبل مکسور او نون مفتوح وي په حالت نصبي او جري کښې لکه مُسْلِمِيْنَ.

جمع مؤنث سالم: هغه ته وائي چه په آخر کښې الف او تاء وي لکه مسلماتٌ، چه د مُسْلِمَةٌ جمع ده.

## دَ معنٰى په اعتبار سره جمع په دوه قسمه ده

د معنٰى په اعتبار سره جمع په دوه قسمه ده: جمع قلت او كثرت.

دَ جمع قلت تعريف: چه اطلاق ئې كيږي دَ دريو نه تر نهه يا لسو پورے.

دَ جمع كثرت تعريف: چه اطلاق ئې كيږي دَ لسو يا يولسو نه تر آخره پورې

جمع قلّت اوزان: اوزان ئې ټول شپږ دي چه په متن كښې مذكور دي:

1، 2) جمع سالم كه مذكر وي او كه مؤنث چه بغير الف لام نه وي لكه مسلمون، مسلمات دا به جمع قلّت وي.

3، 4، 5، 6) د جمع قلت څلور وزنونه دي: أَكْلُبٌ بروزن أَفْعُلٌ چه دَ كَلْبٌ جمع ده، أَقْوَالٌ بروزن أَفْعَالٌ چه دَ قَوْلٌ جمع ده، أَعْوِنَةٌ بروزن أَفْعِلَةٌ چه دَ عَوْنٌ جمع ده، غِلْمَةٌ بروزن فِعْلَةٌ چه دَ غُلَامٌ جمع ده.

فائده: مختصر دَ جمع قلّت دَ شپږ اوزانو نه علاوه به جمع كثرت وي.

نوټ: دَ جمع قلّت اوزان دَ كثرت په ځائے او دَ جمع كثرت اوزان دَ جمع قلّت په ځائے استعماليږي، مثال: أَقْوَالٌ.

## تمرين (11)

جمع دَ لفظ او معنٰى په اعتبار جدا كړئ، واحد لپاره جمع او ثلاثي، رباعي، خماسي جدا كړئ او ترجمه وكړئ.

قَانِتَاتٌ، أَمْثِلَةٌ، اَلْمُتَعَلِّمُوْنَ، الصَّائِمَاتُ، دَرَاهِمُ، عِظَامٌ، فِتْيَةٌ، أَبْصِرَةٌ، أَكَابِرُ، أَفْرَاشٌ، أَفْلُسٌ، مُهْلِكُوْنَ، أَفْحُلٌ، مُسْكِتُوْنَ، اَلْأَغْصَانُ، أَفْئِدَةٌ، أَظْبٌ، أَدْلٌ، أَثْوَابٌ، جُهَلٌ، مُبْطِلَاتٌ، أَعْظِمَةٌ، أَقْصَادٌ، فَضَائِلُ، عُلَمَآءُ، أَكْوَابُ، أَطْعِمَةٌ، مُنْذِرَاتٌ، أَعْدَالٌ، أَعْسَاكٌ، أَعْمِدَةٌ، أَرْجُلٌ، نُجُوْمٌ، أَعْمَالُهُمْ، أَجْسَامٌ، مُؤْمِنَاتٌ، فَلَّاحُوْنَ، مَسَاكِيْنُ، أَنْفُسٌ، شِيْخَةٌ، ثِيْرَةٌ، أَمْنَعُوْنَ، نُكْحَيَاتٌ، بَرَاثِنُ،

قَرَاطِبُ، قَبَاعِثُ، قَمَاطِرُ، سَفَارِجُ.

## بدانکه اعراب اسم بر سه صنف است رفع، نصب، جر

دَ اعراب په اعتبار سره اسم متمکن په شپاړلس قسمه دے، مګر دَ دینه مخکښ یو څو خبرے پیژاندل ضروري دي.

(1)اولنۍ خبره: دَ اسم اعراب درے دي: رفع، نصب، جر، او په ترکیب کښ دَ واقع کیدلو په اعتبار سره دَ اسم متمکن درے قسمونه دي: فاعلیت، مفعولیت، اضافت یعني مضاف الیه.

رفع دلالت کوي په فاعل باندے او دَ هغه په توابع باندے، توابع نه مراد نائب فاعل، مبتداء، خبر، دَ افعال ناقصه اسم، لائے نفي جنس خبر وغیره.

نصب دلالت کوي په مفعول به او دَ هغه په توابع باندے، توابع نه مراد مفعول معه، مفعول مطلق، حال، تمیز وغیره.

جر دلالت کوي په مضاف الیه باندے او دَ هغه په تمام توابع باندے، توابع نه مراد هر هغه اسم دے چه آخر ئې دَ حروف جاره دَ وجې نه مجرور وي.

دَ اعراب تعریف: اَلْإِعْرَابُ عِبَارَةٌ عَنِ الْحَرْكَةِ أَوِ الْحَرْفِ فِي آخِرِ الْمُعْرَبِ.

(2)دویمه خبره:د رفع، نصب، جر تعریفات.

رفع:بلندئ ته وائي، او په اصطلاح کښ رفع هغه حرف یا حرکت ته وائي چه دَ اسم متمکن په آخر کښ واقع شي دَ عامل رافع دَ وجه نه، مثال: جاءَنِي زَيْدٌ، جَاءَنِي أَبُوْكَ.

نصب: ودرولو ته وائي، او په اصطلاح کښ نصب هغه حرف یا حرکت ته وائي چه دَ اسم متمکن په آخر کښ واقع شي دَ عامل ناصب دَ وجه نه، مثال: رَأَيْتُ زَيْدًا،رَأَيْتُ أَبَاكَ.

جر: راښکلو ته وائي، او په اصطلاح کښ جر هغه حرف یا حرکت ته وائي

چه دَ اسم متمکن په آخر کښې واقع شي دَ عامل جاره دَ وجه نه، مثال: مَرَرْتُ بِزَيْدٍ، مَرَرْتُ بِأَبِيْكَ.

(3)دريمه خبره: رفع دَ اسم متمکن په آخر کښې په شپږ صورتونو کښې واقع کيږي: (1) ضمه لفظي لکه جاءَنِيْ زَيْدٌ، (2) ضمه تقديري لکه جَاءَنِي مُوْسٰى، (3) واؤ لفظي، جاءني مُسْلِمُوْنَ،(4) واؤ تقديري لکه جاءَنِي مُسْلِمِيَّ، (5)الف لفظي لکه جاءنِي رجُلان، (6)الف تقديري لکه جَاءَنِي غُلاما الرَّجُلِ.

نصب دَ اسم متمکن په آخر کښې په اته صورتونو کښې واقع کيږي: (1)فتحه لفظي لکه رَأَيْتُ زَيدًا، (2)فتحه تقديري رَأَيْتُ مُوْسٰى، (3)کسره لفظي رأيتُ مُسْلِماتٍ،(4) کسره تقديري لکه رأَيْتُ مُسْلِمَاتِيْ، (5)يائے لفظي سره لکه رأيتُ مُسْلِمِيْنَ، (6)يائے تقديري لکه رأيتُ مُسْلِمِي الْقَوْمِ،(7) الف لفظي رأيتُ أبَاكَ، (8)الف تقديري لکه رأيتُ أَبا الْقَاسِمِ.

جر دَ اسم متمکن په آخر کښې په شپږ صورتونو کښې واقع کيږي: (1)کسره لفظي لکه مررتُ بزيدٍ، (2)کسره تقديري، لکه مررت بالهدیٰ، (3)فتحه لفظي لکه مررتُ بأحْمَدَ، (4)فتحه تقديري لکه مررتُ بحُبْلٰى،(5) يائے لفظي لکه مررتُ بأَبِيْكَ، (6)يائے تقديري لکه مررتُ بأَبِي القَاسِمِ.

دَ اسم متمکن اقسام او دَ هغې اعراب: دَ اولني دريو وارو اعراب به يو شانته وي.

(1) مفرد منصرف صحيح: هغه اسم متمکن وي چه په يوه معنٰى باندے دلالت کوي، او په مفرد قيد سره ترينه تثنيه او جمع ووتل، او په منصرف قيد سره ترينه غير منصرف او په صحيح قيد سره ترينه معتل ووتو.

خلاصه: چه کوم اسم مفرد منصرف صحيح وي نو حالت رفعي به ئې په لفظي ضمه سره وي او حالت نصبي به ئې په لفظي فتحه سره او حالت جري به ئې په لفظي کسره سره وي لکه جَاءَ زَيْدٌ، رأيتُ زيدًا، مررتُ بزَيْدٍ.

(2)منفرد منصرف جاري مجرٰی صحیح: هغه اسم ته وائي چه تثنیه او جمع نه وي او غیر منصرف نه وي او په آخر کښ واؤ یا یاء ماقبل ساکن وي لکه دَلْوٌ، ظَبْيٌ، دَ دے اعراب هم دَ مفرد منصرف صحیح پشانتے دي.

فائده: جاري مجرٰی صحیح یعني قائم مقام دَ صحیح: هغه اسم ته وائي چه په آخرکښ واؤ یا یاء وي ماقبل ساکن وي نو ثِقل پکښ نه وي نو دَ صحیح پشانتے پري درېږ واړه اعراب سره دَ تنوین نه راځي. لکه جَاءَ دَلْوٌ، رأیتُ دَلْوًا، مررت بدلوٍ.

فائده: صرفیانو په اصطلاح کښ صحیح هغه ته وائي چه دَ هغه دَ حروف اصلي په مقابله کښ همزه او حرف علت او دوه حروف دَ یو جنس نه نوي لکه نَصَرَ، او نحویان حضرات دَ آخري حرف اعتبار کوي.

خلاصه: زید دَ نحویانو په نزد صحیح او په نزد دَ صرفیانو اجوف یائئ دے، ربَّ، دَ نحویانو په نزد صحیح او دَ صرفیانو په نزد مضاعف دے.

## جمع مکسر وجمع مؤنث سالم

(3)جمع مکسر منصرف: هغه اسم ته وائي چه دَ واحد بناء پکښ سلامت نه وي په جمع قید سره ترینه تثنیه او مفرد خارج شو، مکسر قید سره ترینه سالم خارج شو، په منصرف قید سره ترینه غیر منصرف خارج شو، اعراب ئې ماقبل پشانته دي لکه جاءَنِي رجالٌ، رأیتُ رجالاً، مررتُ برجالٍ.

(4)جمع مؤنث سالم: په جمع سره ترینه مفرد او تثنیه خارج شو، په مؤنث سره ترینه مذکر خارج شو، په سالم سره ترینه مکسر خارج شو.

دَ جمع مؤنث سالم اعراب: حالت رفعي به ئې په لفظي ضمه سره وي لکه جَاءَتْ مُسْلِمَاتٌ. حالت نصبي او جري به ئې په لفظي کسره سره وي لکه رأیتُ مسلِمَاتٍ، مررتُ بمُسْلِمَاتٍ.

## تمرين (12)

خَلَقَ اللّٰهُ السموواتِ، رأيْنَا ظَبْيًا، أوْلَئِك هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ، لَمْ يُوْقِدْ بَكْرُ نِ الْمِصْبَاحَ، أَكَلَتِ الْبَقَراتُ، يَلْعَبُ الْغِلْمَانُ بِالْكُرَاتِ، عَلِيٌّ يَرْكَبُ الْحِمَارَ، قَرَأْتُ الْكِتَابَ، أَخَذْتُ مِطْوًا، هذَا وَلَدٌ، لَا تَتَّبِعُوْا خُطُواتِ الشَّيْطَانِ، يَسْبَحُ الْأَوْلَادُ فِي الْبَحْرِ، مَشِيْتُ فِي الطُّرُقِ، مَرَرْتُ بِرَجُلٍ قَوِيٍّ، أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ، ذَبَحْتُ الدَّجَاجَاتِ، بَكَى الطِّفْلُ، مَصَّ الْوَلَدُ ثَدْيَ أُمِّه، نَرْكَبُ عَلَى الْأَفْرَاسِ، هذَا الوَلَدُ وَلَدٌ ذَكِيٌّ، يَعِيْشُ السَّمَكُ فِي الْمَاءِ، رَأَيْتُ الْهِنْدَاتِ فِي السَّبْتِ، كَتَبْتُ الدّرُوْسَ، أَكَلْنَا لَحْمً طَرِيًّا، ذَهَبْتُ إِلَى الشَّجَراتِ، جَاءَ الْأُسْتَاذُ، مَا خَلَقْنَا السَّمَاواتِ وَالأَرْضَ، يَقْرَأُ حَامِدُ نِ الْكِتَابَ، هُنَّ مُسْلِمَاتٌ.

## (5) دَ غير منصرف تعريف او اقسام

عَدْلٌ وَّوَصْفٌ وَتَانيثٌ ومعرفة وعُجْمَة ثُمّ جمعٌ ثُمَّ تركيبٌ
والنون زائدةٌ من قَبْلِهَا أَلفٌ ووزن فعلٍ وهذا القول تقريب

فائده: په بعض اسمونو کښې داسې اسباب وي چه دَ هغې دَ وجه نه په اسم بانديے کسره او تنوين نشي راتللے هغه ته اسباب دَ منع صرف وائي چه ټول نهه دي: (1) عدل، (2) وصف، (3) تانيث، (4) معرفه، (5) عجمه، (6) جمع، (7) ترکيب، (8) وزن فعل، (9) الف نون زائدتان.

دَ اسباب منع صرف دَ تفصيل نه مخکښې دَ منصرف او غير منصرف تعريف او حکم ذکر کوو.

منصرف: هغه اسم ته وائي چه په هغه کښې دوه سببه دَ اسبابو دَ منع صرف پکښې نه وي يا داسې يو سبب چه قائم مقام دَ دوو سببونو وي هغه پکښې نه

وي.

## دَ منصرف حکم

په دے باندے کسره او تنوین راځي لکه جاء زيدٌ.

غیر منصرف: هغه ته وائي چه دوه سببه دَ اسبابو دَ منع صرف پکښ وي یا یو سبب چه قائم مقام دَ دوو سببونو وي.

دَ غیر منصرف حکم: تنوین او کسره پرے نه راځي لکه جَاءَ عُمَرُ، رأيتُ عُمَرَ، مررتُ بعُمَرَ.

فائده: عُمَرُ غیر منصرف او عَمْرٌو منصرف دے، او دَ عَمْرٌو نه روستو واؤ لیکلے کیګي وئیلے کیګي نه، چه فرق راشي په عُمَر او عَمْرو کښ.

فائده: سؤال: په غیر منصرف تنوین او کسره ولې نه راځي؟

جواب: دَ غیر منصرف دَ فعل سره مشابهت دے په وجود دَ دوو فرعو کښ لکه څنګه چې فعل کښ دوه فرعے وي یو احتیاج الي الفاعل او دویم احتیاج الي المصدر دغسې غیر منصرف کښ هم دوه فرعے وي چه محتاجه وي دوو اسباب دَ منع صرف ته یا یو داسې سبب ته چه قائم مقام دَ دوو سببونو وي، نو دغه مشابهت له وجه پرې تنوین او کسره نه راځي.

تفصیل دَ غیر منصرف دَ نهه اسبابو:

1) عدل: في اللغة اوړیدل، اعراض کول ته وائي.

او په اصطلاح کښ: تَحْوِيْلُ الْإِسْمِ مِنْ حَالَةٍ إِلٰى حَالَةٍ أُخْرٰى مع بَقاءِ الْمَادَّةِ الْأَصْلِيَّةِ وَالْمَعْنَى الْأَصْلِيَّةِ بِلَا قَانُوْنٍ صَرْفِيٍّ.

چه یو اسم خپل اصلي شکل پریږدي بَل شکل اختیار کړي بغیر دَ صرفي قاعده او قانون نه.

او دَ عدل مشهور شپږ وزنونه دي چه دے شعرونو کښ جمع دي.

أَوْزَانِ عَدَل رَا بتمامي شش شمر

مَفْعَلُ فُعَلْ مِثالُهُمَا مَثْلَثْ عُمَرْ

فَعْلِ است همچون اَمْسِ فُعَال چون ثُلَاثُ

ديگر فعال داں قطام وفَعَلْ سَحَرْ

نوټ: اصلي شکل ته معدول عنه وائي او دويم شکل ته معدول وائي.

عدل په دوه قسمه دے: (1) عدل تحقيقي، (2) عدل تقديري.

عدل تحقيقي: مَا فِيْهِ دَلِيْلٌ عَلٰى أَصْلِه سِوا غَير مُنْصَرِفٍ.

عدل تحقيقي هغه ته وائي چه په اصل باندے دَ غير منصرف وئيلو نه علاوه بل دليل موجود وي،مثال ئي: ثُلاثُ، مَثْلَثُ، اهل عرب دا غير منصرف ذکر کوي، حالانکه په دي کښ دَ غير منصرف دَ نهه اسبابو نه صرف يو سبب موجود دے چه وصف دے او په يو سبب سره کلمه غير منصرف نه جوړيږي نو مونږ تسليم کړه چه دا دَ ثلاثة ثلاثة نه معدول شوے دے او دليل ئې دا دے: چه په دے کښ دَ هر يو په معنٰى کښ تکرار دے. او قانون دا دے چه تکرار دَ معنٰى دلالت کوي په تکرار دَ الفاظو باندے. او نورمثالونه ئي دادي: اُحَادُ، مَوْحَدُ، ثناءُ وَمثْنٰى، رُبَاعُ مَرْبَعُ، خُمَاسُ مَخْمَسُ، سُدَاسُ مَسْدَسُ، سُبَاعُ مَسْبَعُ، ثَمَانُ مَثْمَنُ، تُسَاعُ مَتْسَعُ، عُشَارُ مَعْشَرُ.

دَ عدل تقديري تعريف: مَا لَمْ يُوْجَد فِيْه دَلِيْلٌ عَلٰى وُجُوْدِ الْأَصْلِ.

چه دَ هغې په اصل يعني معدول عنه باندے دَ غير منصرف وئيلو نه علاوه بل دليل موجود نه وي، مثال: عُمَر.

اهل عرب دا غير منصرف استعمالوي، حالانکه په دے کښ صرف يو سبب موجود دے چه معرفه ده نو مونږ فرض کړو چه دا دَ عَامِرٌ نه معدول دے نو يو سبب پکښ معرفه او دويم سبب پکښ عدل شو.

فائده: عدل تقديري خاص دے دَ نومونو سره. هغه په شمار يو څو نومونه

دي.

2) وصف: في اللغة بيان کول، تعریف کول.

مراد ترینه هغه اسم دے چه په داسې ذات دلالت وکړي چه په هغه کښې دَ یو وصف اعتبار شوے وي لکه أَحْمَرُ، حَمْرَاءُ، دا په داسې ذات دلالت کوي چه هغه کښې دَ سُر والي اعتبار وي.

وصف په دوه قسمه دے: (1) وصف اصلي، (2) وصف عارضي.

وصف اصلي وضعي: هغه دے چه واضع دَ وصف لپاره وضع کړے وي، مثال: أَسْوَدْ، أَرْقَمْ.

وصف دَ غیر منصرف لپاره سبب جوړیدو شرط دا دے چه دَ اصل وضعه په اعتبار سره به پکښې معني وصفي موجود وي لکه أَسْوَد او أَرْقَم چه غیر منصرف دي، یو پکښې وصف او دویم وزن فعل دے اګرچه اوس دَ مارانو نومونه مقرر شوے دي، تور او برګ مارانو ته وائي.

وصف عارضي: چه واضع دَ وصف لپاره نه وي وضعه کړے، لهذا دا به منصرف وي، مثال: مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ أَرْبَعٍ لفظ أَرْبَعٌ منصرف دے اګرچه وزن فعل او وصف پکښې شته لیکن وصفیت پکښې عارضي دے اصلي نه دے اګرچه په ترکیب کښې أَرْبَعٌ دَ نِسْوَة لپاره صفت واقع شوے دے لیکن اصل کښې دا واضع دَ عدد لپاره وضعه کړے دے دَ صفت لپاره ئې ندے وضعه کړے.

3) تانیث: که تانیث په الف مقصوره یا الف ممدوده سره وو نو دَ غیر منصرف وئیلو لپاره ئې شرط نشته ځکه دا یو سبب قائم مقام دَ دوو سببونو دے لکه حُبْلٰی او حَمْرَاءُ.

په الف مقصوره او ممدوده کښې دا صفت دے چه کله دَ یوے کلمے سره راشي نو داسې ورسره لازم شي چه په حالت دَ وقف او په حالت دَ غیر وقف

کښې ترینه نه جدا کیږي نو ګویا چه دوه سببه شو، یو تانیث او دویم لزوم تانیث.

فائده: تانیث په دوه قسمه دے: (1) تانیث لفظي، (2) تانیث معنوي.

که تانیث لفظي وو نو دَ غیر منصرف سبب جوړیدلو لپاره شرط علمیت دے، مثال: طَلْحَةُ، عَائِشَةُ، حُذَیْفَةُ، دا غیر منصرف دي یو پکښې عَلَم او دویم پکښې تانیث لفظي دے.

که تانیث معنوي وو نو یو پکښې علمیت شرط دے او بل پکښې دَ دریو شرطونو نه یو شرط پکار دے:(1)یا به ئې حروف دَ دریو نه زائد وي لکه زینب.(2)او که درے وي نو بیا به متحرك الاوسط وي لکه سَقَرْ.(3)او که دا دواړه شرطونه نه وي نو بیا به عجمه لفظ وي لکه ماه او جُور.

4) معرفه: معرفه به دَ غیر منصرف لپاره سبب هغه وخت جوړیږي چه دَ چا نوم وي لکه أَحْمَدُ یو پکښې وزن فعل او بل معرفه ده.

نوټ: دَ معرفه باقي شپږ قسمونه دَ غیر منصرف لپاره سبب ځکه نه جوړیږي چه مضمرات، اسمائے اشارات، اسمائے موصولات دا دريې واړه مبني دي نو دَ معرب غیر منصرف لپاره سبب هرګز نه جوړیږي ځکه چه دا ئې ضد دے نو په دواړو کښې منافات دي.

او معرفه بالف لام او مضاف خو غیر منصرف په حکم دَ منصرف کښې ګرځوي نو سبب به ورلره څنګه جوړ شي، او معرفه بالنداء اکثرو حالتونو کښې مبني ده.

5) عجمه: في اللغة چاړا، کند زبان ته وائي

او په اصطلاح کښې چه دَ عجمي زبان لفظ وي او اهل عرب ئې په خپل کلام کښې ذکر کوي او استعمالوي.

فائده: عجمه به دَ غیر منصرف لپاره سبب په هغه وخت کښې وي چه کله دَ

چا نوم وي لکه إبراهيم، إبليس. او دَ دوو شرطونو نه پکښې يو شرط وي:
(1)عجمه به زائد علي الثلاثة وي لکه إبراهيم،
(2)که زائد علي الثلاثة نه وي نو متحرک الأوسط به وي لکه شَتَرَ.
فائده: دَ اهل عرب عادت دا دے چه په کم لفظ ورته تلفظ گران وي نو په هغه کښې تغير او تصرّف کوي لهذا عجمي لفظ چه عربي زبان ته منتقل شو نو ثقيل شو نو دَ تغير او تصرف نه دَ بچ کيدلو لپاره ئې علميت شرط کړه چه ثقل باقي پاتے شي.
قاعده: اعلام بقدر الإمكان محفوظ وي دَ تغير او تصرف نه.

6) جمع منتهى الجموع: به دَ غير منصرف لپاره سبب هغه وخت کښې جوړيږي چه په آخر کښې ئې داسې ”ة“ نه وي چه په حالت دَ وقف کښې په ”ه“ سره بدليږي، مثال: مَسَاجِدُ، که چرته په آخر کښې داسې ”ة“ وه نو بيا به منصرف وي، مثال: صَيَاقلة.

دَ جمع منتهى الجموع تعريف: چه اولنے او دويم حرف به ئې مفتوح وي او په دريم ځائے کښې به ئې الف علامت دَ جمع اقصىٰ وي او دَ الف نه روستو به يو حرف وي يا دوه يا درې حروف وي.
که يو وو نو مشدد به وي او دَ حرکت اعتبار به ئې نوي مثال: دوَآبُّ.
که دوه وو نو اولنے به ئې مکسور وي او دَ دويم دَ حرکت اعتبار به ئې نه وي مثال: مَسَاجِدُ.
که درے وو نو اولنے به ئې مکسور وي او په دويم ځائے به يائے ساکنه وي او دَ آخري حرف اعتبار به ئې نه وي، مثال: مَصَابِيْحُ.
فائده: جمع منتهى الجموع قائم مقام دَ دوو سببو دے يو پکښې جمعيت او بل پکښې لزوم جمعيت ځکه چه دے نه بعد بله جمع مکسر نه راځي.
نوټ: دَ جمع منتهى الجموع ډير اوزان دي: مَفَاعِلُ، مَفَاعِيْلُ، أَكَالِيْبُ

بروزن أَفَاعِيْلُ، صَحَائِفُ بروزن فَعائل، عَجاوِز بروزن فَعَاوِلُ، ضَوَارِبُ بروزن فَوَاعِلُ.

7) ترکيب: ترکيب به دَ غير منصرف سبب په هغه وخت کښ وي

(1)چه کله دَ چا نوم وي، مثال: مَعْدِيْكَرَب، حضرموت، بعلبك.

(2)ترکيب اسنادي به نه وي لکه زيدٌ قائمٌ. (3)مرکب اضافي به نه وي لکه غلامُ زيدٍ، (4)مرکب توصيفي به نه وي لکه رجلٌ عالِمٌ، (5)مرکب بنائي به نه وي لکه أَحَدَ عَشَرَ، (6)مرکب صوتي به نه وي لکه سِيْبَوَيْه.

خلاصه: ترکيب به دَ غير منصرف سبب هله وي چه دَ چا نوم وي لکه حَضَرَ موتُ، يو سبب ترکيب دويم عَلَم دے او باقي پنځه به دَ غير منصرف لپاره سبب نه وي.

8) وزن فعل: وزن فعل نه مراد هغه وزن دے چه ابتداءً دَ فعل په وزن وي او روستو په اسم کښ استعمال کړے شوے وي.

بيا دَ وزن فعل دوه صورتونه دي: (1) اختصاص الوزن بالفعل، چه هغه وزن دَ فعل سره خاص وي، مثال: شَمَّرَ دَ باب تفعيل نه دَ ماضي صيغه ده، يو وزن فعل دويم عَلَم.

(2)يا هغه وزن په اسم او فعل دواړو کښ وي نو بيا به دَ غير منصرف سبب په هغه وخت کښ وي چه په ابتداء کښ دَ حروف اَتين نه يو حرف راشي او په آخر کښ داسے "ة" نه قبلوي چه په حالت دَ وقف کښ په "ه" سره بدليږي أحمد، يشكر، ثعلب دا غير منصرف دي، وزن فعل او عَلَم.

او که په آخر کښ ئې "ة" وه نو بيا به منصرف وي لکه يَعْمَلُ چه مؤنث ئې يَعْمَلَةٌ راځي، مثال: نَاقَةٌ يَعْمَلَةٌ.

نوټ: وزن فعل عام دے که ماضي ومضارع وامر وي.

9) الف نون زائدتان: نه هغه مراد دي چه دَ اسم په آخر کښې وي او دَ ف،ع، ل کلمې په مقابله کښې نه وي لکه سَلْمَان، عِمْرَان. یا به دا دواړه یعني الف ونون دَ اسم په آخر کښې زائد وي یا به دَ صفت په آخر کښې زائد وي دَ اسم نه مراد هغه اسم دے چه دَ صفت په مقابله کښې وي، نه هغه اسم چه دَ فعل او حرف په مقابله کښې وي.

خلاصه: که الف نون دَ اسم په آخر کښې زائد وي نو دا به هله غیر منصرف وي چه علم وي لکه عمران، کامران، او که دَ صفت په آخر کښې زائد وي نو دَ غیر منصرف لپاره شرط دا دے چه مؤنث ئې دَ فَعْلَانَةٌ په وزن نه وي، مثال: سَکْرَان دا غیر منصرف دے ځکه چه مؤنث ئې سُکْرٰی راځي، یو پکښې الف نون زائدتان او دویم وصف.

او که نَدْمَان دَ نَدِیْم نه شي نو منصرف دے ځکه مؤنث ئې نَدْمَانَةٌ راځي او که ندمان دَ نادم نه شي نو غیر منصرف دے ځکه مؤنث ئې دَ فعلانةٌ په وزن نه دے بلکه نَدْمٰی دے. شعر:

نَدْمَان منصرف که بُوَدْ أَزْ مَنادَمَهْ
تانیث أو بَتَا بُوَدْ أو معنیش ندیم

بَرْ از ندم بُوَد به الف دا مونشتت
قابل به انصراف شدن نیست مُستقیم

گوهمي خواهي که یابي نام هر پیغمبرے
تا کدام از نزد نحوي منصرف لا ینصرف

صالح وهود ومحمد با شعیب ونوح ولوط
این همه دان منصرف دیگر همه لا ینصرف

فوائد نافعه: (1)غیر منصرف په اضافت او په دخول دَ الف لام سره په حکم دَمنصرف کښې ګرځي لکه عَاکِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ، لقد خلقنا الإنسان في

أحسن تقويم. لهذا كسره او تنوين به پرے راځي.

(2)انبيائے كرام عليهم السلام په نومونو كښې اووه نومونه منصرف دي:

محمد ﷺ، صالح عليه السلام، شعيب عليه السلام دا عربي منصرف دي.

او نوح عليه السلام، لوط عليه السلام، شيث عليه السلام دا عجمي منصرف دي.

او دَ عُزير عليه السلام په نوم كښې دوه اقوال دي: كه چرته دَ عربئ نه شي نو دَ تعزير نه دے بيا منصرف دے او كه عجمه شي نو غير منصرف دے، او باقي تمام اسماء دَ انبياء عليهم السلام عجمي غير منصرف دي.

مجموعه ئې صُـــــن شـــــمـــلــــه

صالح نوح، شعيب محمد لوط هود

شيث عليهم الصلوات والتسليمات

(3)او دَ ملائيكه عليهم السلام په اسمائو كښې دَ څلور اسماء نه علاوه باقي عجمي غير منصرف دي او په دغه څلورو كښې رِضوان عليه السلام عربي غير منصرف دے، باقي درې منكر، نكير مالِک عربي منصرف دي.

(4)كه ابليس عجمي الاصل يا عربي الاصل شي نو په هر حال كښې غير منصرف دے.

مصنف رحمه الله په اسباب دَ منع صرف كښې عدل مقدم كړو ځكه چه په هغه كښې شروط نشته.

حكم: كه دَ غير منصرف نه مخكښې عامل رافع وو بيا به پرے ضمه راځي بغير دَ تنوين نه او كه عامل ناصب يا جاره وو نو بيا به پرے دوارو حالاتو كښې فتحه راځي بغير دَ تنوين نه، څنګه چه مثالونو كښې واضحه ده.

غير منصرف دَ تنكير، تصغير، وزن شعري په وخت كښې منصرف وئيل جائز دي.

امام شافعي رحمه الله فرمائي:

أَعِدْ ذِكْرَ نعْمَانٍ لَّنَا أَنَّ ذِكْرَه هُوَ الْمِسْكُ مَا كَرَّرْتَه يَتَضَوَّع

حضرت فاطمه رضی اللہ عنہا فرمائي:

صُبَّتْ عَلَيَّ مَصَائِبُ لَوْ أَنَّهَا صُبَّتْ عَلَى الْأَيَّامِ صِرْنَ لَيَالِيَه

## تمرين (13)

دَ غير منصرف اسباب بيان كړئ، تركيب او ترجمه وكړئ.

إِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ مَفَازًا حَدَائِقَ وَأَعْنَابًا وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا، دَخَلْنَا فِي حَضَرَ مَوْتَ، أُسْتُشْهِدَ حَمْزَة فِي الْحَرْبِ، عَائِشَةُ اِمْرَأَةٌ طَيِّبَةٌ، لَبِسَ زَيْدٌ سَرَاوِيْلَ، اِسْمُه أَحْمَدُ، جَاءَ يَشْكُرُ، أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِيْنَ، جَدُّكَ عُثْمَانُ، هُمْ فِي الْمَسَاجِدِ، رأيتُ شَاةً صَفْرَاءَ، طَافَ زُفَرُ، وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوسٰى وَهَارُوْنَ، يَعْمَلُوْنَ لَه مَا يَشَاءُ مِنْ مَحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ، هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْجُنُوْدِ فِرْعَوْنَ وَثَمُوْدَ، لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ، أَبُوْكَ عِمْرَانُ، وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَاهِيْمَ، أَخُوْكَ سَلْمَانُ.

## اسمائے ستّه مكبّره

(7)اسمائے ستّه مكبّره: أب، أخ، حم (ليور) هَنٌ شرمګاه نه كنايه ده يا ذِكر قبيح ته وائي، فم، ذومال.

أَبَوٌ، أَخَوٌ، حَمَوٌ، هَنَوٌ دا څلور واړه ناقص واوي دي او واؤ ئې ترينه دَ تخفيف لپاره خلاف القياس حذف كړو.

فَمٌ: اصل كښې فَوْهٌ يا فُوْه نو "ه" ترينه خلاف القياس حذف كړه نو دوه حروف پاتې شو او دويم حرف ئې حرف علت وو چه په اسماء سته كښې بَل داسې نه وو چه آخري حرف ئې حرف علت وو نو بغير دَ اضافت له وجه به دَ قريب

المخرج دَ وجه نه واؤ په ميم سره بدليږي نو فَمٌ، او دَ اضافت په صورت کښې به واؤ واپس راځي لکه فَوْكَ. که دَ اضافت له وجه ميم حذف شو نو بيا به ئې اعراب بالحرکت وي، مثال: ضَعْ يَدَكَ عَلٰى فَمِكَ عِنْدَ التَّثاؤُبِ.

ذُو په اصل کښې ذَوْوٌ يا ذُوْيٌ نو واؤ او ياء ترينه خلاف القياس حذف کړه نو ذُو پاتي شو.

دَ اعراب نه مخکښې څو خبرې بطور تمهيد يادول ضروري دي.

(1) اولنۍ خبره: اعراب په دوه قسمه دے: (1)اعراب بالحرکت، (2)اعراب بالحرف.

اعراب بالحرکت په درے قسمه دے: واؤ، الف، ياء.

(2) دويمه خبره: اعراب بالحرکت اصل او اعراب بالحرف ئې فرعه ده ځکه چه اعراب بالحرف دَ اعراب بالحرکت نه پيدا کيږي، واؤ دَ دوه ضمو نه الف دَ دوه فتحو نه او ياء دَ دوه کسرو نه. ځکه خو واؤ ماقبل ضمه، الف ماقبل فتحه او ياء ماقبل کسره غواړي.

(3) دريمه خبره: مفرد اصل دے تثنيه او جمع ئې فرعه دي نو نحويانو حضراتو مفرد ته اعراب بالحرکت ورکړو او تثنيه او جمع ته ئې اعراب بالحرف ورکړو.

(4) څلورمه خبره: په داسې کولو سره دَ مفرد تثنيه جمع په درميان کښې اجنبيت تامه پيدا شو نو دَ دغه اجنبيت ختميدلو لپاره ئې شپږ اسماء منتخب کړه او اعراب بالحرف ئې ورکړو چه اجنبت ختم شي.

(5) پنځمه خبره: شپږ اسماء ئې ولے منتخب کولو پنځه يا اووه ئې ولے نه منتخب کولو، وجه دا ده چه دَ تثنيه او جمع دَ اعراب شپږ حالات دي دَ تثنيه حالت رفعي، نصبي او جري، او دَ جمع حالت رفعي، نصبي او جري.

(6) شپږمه خبره: دا شپږ ئې ځکه منتخب کړه چه دَ دے په آخر کښې دَ

اعراب بالحرف صلاحيت موجود دے.

دَ اسماء سته اعراب به بالحرف لفظي وي، حالت رفعي په لفظي واؤ سره حالت نصبي په لفظي الف سره او حالت جري په لفظي ياء سره لکه جَاء أبوك، رأيتُ أَبَاكَ، مررتُ بِأَبِيْكَ.

ترکيب: جاء أبوك: جاء فعل أبو مضاف ك مضاف اليه، مضاف سره دَ مضاف اليه نه دا فاعل شو دَ جاءَ لپاره، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعليه خبريه.

اسمائے سته مکبره دَ اعراب لپاره شرطونه: دَ اسمائے سته مکبره دَ اعراب به هله وي چه څلور شرطونه پکښ وي:

(1)دا اسمائے سته به مکبر وي مصغر به نه وي که مصغر وه نو اعراب بالحرکت به ئې لفظي وي لکه جَاءني أُخيُّكَ، رايتُ أُخَيَّكَ، مررتُ بِأُخيِّكَ.

(2)اسماء سته به مفرد وي تثنيه او جمع به نه وي که وه نو اعراب به ئې دَ تثنيه او جمع والاوي لکه جاءني أخَوَانِ، رايتُ أَخَوَيْنِ مررتُ بِأَخَوَيْنِ.

(3)دا به مضاف وي که مضاف نه وه نو بيا به ئې اعراب بالحرکت لفظي وي لکه جاءني أبٌ، رأيتُ أبًا، مررتُ بِأَبٍ.

(4)دا به مضاف وي خو ضمير دَ يائ متکلم ته به مضاف نه وي که وه نو اعراب بالحرکت به ئې تقديري وي لکه جاءني أَبِيْ، رأيتُ أَبِي، مررتُ بِأَبِي.

دَ اسمائے سته مکبره دَ استعمال څلور صورتونه دي:

(1) مضاف به وي ضمير غائب ته، جاءني أبُوه، رأيتُ أبَاه، مررتُ بأبيه.

(2) مضاف به وي ضمير مخاطب ته، جاءني أبوك، أباك، بأبيك.

(3) مضاف به وي ضمير دَ جمع متکلم ته، جاءني أبونا، أبانا، بأبينا.

(4) مضاف به وي اسم ظاهر ته، جاءني أبو زيد، أبا زيد، بأبي زيد.

دا تمام تفصيل دَ اسمائے سته مکبره سواء دَ ذُومالٍ نه دے ځکه چه ذُو

همیشه اسم ظاهر طرف ته مضاف وي دَ اسم ضمیر طرف ته به مضاف نه وي ځکه چه ذو اسم جنس دَ خپل ماقبل لپاره صفت جوړا وي او ضمیر ذات وي جنس نه وي لکه جاءني ذُوْمالٍ، رأيتُ ذَا مالٍ، مررتُ بذِيْ مالٍ.

(7)تثنیه: رَجُلانِ.

(8)کِلا او کِلتَا: بشرطیکه چه مضاف وي ضمیر دَ غائب ته لکه جاءني کلاهما، رأيتُ کلَيْهما، مررتُ بکلَيْهِما.

(9)اثنان واثنتان: مصنف علیه الرحمة دَ تثنیه حقیقي او دَ هغه د ملحقات اعراب ذکر کوي تعریفات ئې مخکښ ذکر شوے دي.

اثنان او کِلا دَ تثنیه مذکر لپاره راځي، اثنتان او کِلتا دَ تثنیه مؤنث لپاره راځي، دَ دے دریو واړو اعراب به بالحرف لفظي وي.

حالت رفعي به ئې په الف سره وي لکه جاءنِي رجُلَانِ، کلاهما، اثنان.

او حالت نصبي او جري به ئې یائے لفظي سره وي لکه رأيتُ رَجُلَيْنِ، کِلَيْهِما، اثنَيْنِ، مررتُ برَجُلَيْن، بکلَيْهِما، باثْنَيْنِ.

فائده: کِلا او کِلتا لا زم الاضافت دي کله به ئې اضافت ضمیر ته شوے وي خنګه چه مصنف علیه الرحمة مقید کړے دے په مضاف بمضمر سره نو بیا به ئې اعراب دَ تثنیه پشانته وي او که چرته مضاف وه اسم ظاهر ته نو بیا به ئې اعراب دَ اسم مقصور پشانته وي یعني تقدیري به وي. جَاءني کلا الرَّجُلين، رأيت کلا الرَّجلين، مررتُ بکلا الرجلينِ.

فائده: کِلا او کِلتا دواړه دَ لفظ په اعتبار سره واحد او دَ معنی په اعتبار سره تثنیه دي نو دَ واحد او تثنیه دواړه ضمیر ورته راجع کولے شي.

ترکیب: جَاء صیغه واحد مذکر غائب فعل ماضي معلوم، رَجُلان ئې فاعل مرفوع په الف سره لفظًا . فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعلیه خبریه.

## تمرين (14)

دَ اسم متمكن شپاړس اقسام دَ يو بل نه جدا كړى، حالات ئي بيان كړى، ترجمه او تركيب وكړى.

جَاءَنِي الرَّجُلان كِلَاهما، قَامَ أَبُوْسَعِيْدٍ، حَضَرَ أَخُوْ عَلِيٍّ، اِحْتَرِمْ أَخَاكَ الْأَكْبَرَ، يُحِبُّ النَّاسُ كُلَّ ذِيْ مُرُوْءَةٍ، حَمُوْكِ جَالِسٌ، قَرَأْتُ مِنَ الْكِتَابِ صَفْحَتَيْنِ، وَقَفَ التَّلَامِيْذُ فِي صَفَّيْنِ، يَثِق النَّاس بِأَبِيْكَ، سَلَّمْتُ عَلَى الْمُسَافِرِيْنَ، اِغْسِلْ فَاكَ بَعْدَ كُلِّ طَعَامٍ، تَمْشِي الدَّجَاجَةُ عَلى رِجْلَيْنِ، ضَعْ يَدَكَ عَلى فَمِكَ عِنْدَ التَّثَاؤُبِ، إِذَا كَانَ أَحَدُ الْعِوَضَيْنِ أَو كِلَاهُمَا مُحَرَّمًا فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ، وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ، اِرْجِعُوْا إِلى أَبِيْكُمْ، وَأَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ، وَهَدَيْنَاهُ النَّجَدَيْنِ، فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشَرَةَ عَيْنا، وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا.

(10)جمع مذكر سالم: مُسلِمُونَ.

(11، 12)أُوْلُو، عشرون نه تر تسعون پورې.

اوس مصنف ﷫ دَ جمع مذكر سالم حقيقي او دَ هغه دَ ملحقات اعراب ذكر كوي دَ دريو واړو اعراب به بالحرف لفظي وي.

حالت رفعي به ئې واؤ لفظي سره وي، جاء مُسْلِمُوْن، جاء أُوْلُو مالٍ، جاء عشرون رجلًا.

حالت نصبي او جري به ئې ياء لفظي سره وي. رأيتُ مسلِمِين، رأيتُ أُولِي مالٍ، رأيتُ عِشرين رجُلًا. مررتُ بمُسْلِمِيْنَ، مررتُ بأُوْلِي مالٍ، مررتُ بعِشْرِين رجلًا.

فائده: أُوْلُوْ او عِشْرُونَ حقيقةً جمع نه دي بلكه دَ جمع مشابه دي دَ مشابهت له وجه نه ئې ورلره دَ جمع اعراب وركړو، أُوْلُوْ حقيقةً جمع ځكه نه

ده چه أُوْلُو جمع دَ ذو ده او ديته جمع من غير لفظه وائي لكه نِسَاءٌ جمع دَ امرأة ده او ديته هم جمع من غير لفظه وائي يعني دَ مفرد الفاظ جدا او دَ جمع الفاظ جدا دي، او حقيقةً هغه جمع وي چه دَ دوارو الفاظ يو وي.

او عشرون هم حقيقةً جمع نه ده ځکه حقيقةً جمع هغه وي چه دَ دريو نه تر آخر پورے بغير دَ تعين نه دلالت كوي او دا خو دَ أُنيس او اكيس په درميان والامتعين عدد باندے دلالت كوي.

سوال: چه عشرون دَ عشرة جمع شي او ثلاثون دَ ثلاثة جمع شي نو څه نقصان به وشي؟

جواب: كه عشرون دَ عشرة جمع شي نو دَ جمع كم از كم درے افراد دي نو بيا به معنٰی شي دريش حالانكه دَ عشرون معنٰی ده بيس نو دا خو لور دَ مور نه غټه شوه او مشره شوه.

## تمرين (15)

دَ اسم متمكن د شپاړسو اقسامو تلاش وكړئ او ترجمه او تركيب وكړئ.

أَمْسَى الْفَائِزُوْنَ مَسْرُوْرِيْنَ، يَرْضَى اللهُ عَنِ الْمُحْسِنِيْنَ، نُسَلِّمُ عَلَى الْقَاعِدِيْنَ، لَهُمْ تِسْعُوْنَ خَرُوْفًا، نَنْظُرُ إِلَى اللَّاعِبِيْنَ، هَؤُلَاءِ ثَمَانُوْنَ اِمْرَأَةً، نَجَحَ الْمُجْتَهِدُوْنَ، نُحِبُّ الصَّالِحِيْنَ، رَأَيْتُ عِشْرِيْنَ رَجُلًا، خَرَجَ الْمُسْلِمُوْنَ إِلَى الْمَسْجِدِ الْجَامِعِ، وَلَا يَأْتَلِ أُوْلُوْ الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ أَنْ يُؤْتُوْ أُوْلِى الْقُرْبٰى، إِنَّ فِي ذَلِكَ لَذِكْرٰى لِأُوْلِي الْأَلْبَابِ، وَوَاعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً.

(13)اسم مقصور: هغه اسم دے چه په آخر كښې ئې الف مقصور وي، مثال: هدٰى، عصا.

(14)غير جمع مذكر سالم مضاف بيائے متكلم: چه مفرد صحيح وي يا جمع مكبر وي او مضاف شي يائے متكلم طرف ته.

مثال: غُلامي، كتابي. دَ دے دواړو اعراب به درے واړو حالا تو كښ په اعراب بالحركت تقديري وي.

حالت رفعي په ضمه تقديري، حالت نصبي په فتحه تقديري او حالت جري په كسره تقديري سره وي. جَاءني رضا، رأيت رضا، مررتُ برضا. جاءني غُلامي، رأيتُ غلامي، مررت بغلامي.

فائده: دَ اسم مقصور اعراب ځكه تقديري دي چه په آخر كښ ئې الف مقصوره ده او الف هميشه لپاره ساكن وضعي وي نو كه حركت پرے راشي نو الف به په همزه سره بدل شي.

فائده: دَ غير جمع مذكر سالم مضاف بيائے متكلم اعراب ئې ځكه تقديري كړل چه په آخر كښ ياء ده او ياء ماقبل كسره غواړي كه په حالت رفعي يا نصبي كښ پرے ضمه يا فتحه راشي نو په يو حرف به دوه مختلف حركات راشي او دا جائز نه ده او كه په حالت جري كښ پرے كسره راشي نو په يو حرف به يو حركت په مختلف اعتبار سره جمع شي او دا هم جائز نه ده نو ځكه ئې اعراب تقديري دے.

(15)اسم منقوص: هغه اسم دے چه په آخر كښ "ي" ماقبل مكسور وي لكه قاضِي، دَ دے اعراب به په دوو حالتو كښ تقديري وي يعني رفعه په ضمه تقديري سره او جر په كسره تقديري سره او حالت نصبي په فتحه لفظي سره لكه جَاء القاضي، رايتُ القاضِيَ، مررتُ بالقَاضِي، په دوه حالا تو كښ به ئې اعراب بالحركت تقديري ځكه وي چه په آخر كښ ئې "ي" ده او "ي" په حروف علّت كښ كمزورے حرف دے او ضمه او كسره ثقيل دي برداشت كولے نشي. او حالت نصبي په بالحركت لفظي سره ځكه وي

اګرچه "ي" کمزورے حرف دے نو فتحه هم حرکت خفیفه دے برداشت کولے ئې شي.

تركيب: جاء القاضي: جاء صیغه واحد مذکر غائب فعل ماضي معلوم، القاضي اسم منقوص حالت رفعي ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعليه خبريه شوه.

فائده: دَ اسم منقوص "ي" دَ کلمه ذاتي "ي" ده یائے متکلم نه ده ځکه خو دَ هغه حکم جدا دے.

(16)جمع مذکر سالم مضاف بیائے متکلم: هغه جمع مذکر سالم چه "ي" متکلم طرف ته مضاف وي، مثال: مُسْلِمِيّ.

دَ دے حالت رفعي به په واؤ تقديري سره وي، وجه دا ده چه په حالت رفعي کښې چه کله د مُسْلِمُوْنَ "ي" ضمير طرف ته اضافت وشي نو نون دَ اضافت دَ وجه نه غُرځيږي نو مُسْلِمُوْي شوه، نو واؤ او "ي" په یوه کلمه کښې یوځائے راغلل نو واؤ په "ي" سره بدل شو او "ي" په "ي" کښې مدغم شوه نو مُسْلِمُيّ شو بیا دَ "ي" دَ مناسبت دَ وجه ضمه په کسره سره بدل شوه نو مُسْلِمِيَّ شوه.

په حالت رفعي کښې اعراب په واؤ سره وه دَ قانون لګیدلو نه بعد واؤ حذف شو نو ځکه اعراب بالحرف تقديري شو.

په حالت نصبي او جري کښې دوه "ي" جمع شوے په یوه کلمه کښې نو "ي" په "ي" کښې مدغم کړه نو مُسْلِمِيّ شوه.

په حالت نصبی او جري کښې اعراب په "ي" سره وو او دَ اضافت نه بعد هغه "ي" باقي ده اګرچه مدغم شوے ده ځکه ئې په دواړو حالاتو کښې اعراب بالحرف لفظي دے. جَاء مُسْلِمِيَّ، رأيتُ مُسْلِمِيَّ، مررتُ بمُسْلِمِيَّ.

تركيب: جاء صیغه واحد مذکر غائب فعل ماضي معلوم، مُسْلِمِيّ مرفوع په واؤ تقديري سره مضاف یاء متکلم ته هغه ئې مضاف اليه، مضاف سره

دَ مضاف اليه فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعليه خبريه.

## تمرين (16)

شپاړس اقسام بيان کړی سره دَ حالاتو، ترجمه او ترکيب وکړی

هَلْ أَتَاكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى،حَمِدَنِيْ عَبْدِيْ، اللّٰهُ داعٍ، جَاهِدُوا الْمُشْرِكِيْنَ بِأَمْوالِكُمْ وأَنْفُسِكُمْ، صَامَتْ سُعْدٰى، عَمِّيْ جَالِسٌ، لَا تَجْلِسُوْا عَلَى الْقُبُوْرِ، لَقِيْتُ مُكْرِمِيَّ، مُرُوْا أَوْلَادَكُمْ بِالصلٰوة، فَأَرَاه الْآية الْكُبرىٰ، فَقَالَ أَنَا رَبُّكُمْ الْأَعْلٰى، تَجْمَعُ البَنَاتُ الْأَزْهَارَ، رَأَيْتُ مُرْشِدِيَّ، اَلْبَيِّنَةُ عَلَى الْمَدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ، أَنْتَ الْمُهْتَدِي، وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمَانَ، أَصْدَق الرُّؤْيَا بِالْأَسْحَارِ، قُلْتُ لِخَالِيْ، قَرَأَ أَخِيْ كِتَابًا، جَعَلَ اللّٰهُ لِلْإِنْسَانِ عَيْنَيْنِ وَشَفَتَيْنِ، أَعَلِّلُ قَلْبِيْ، قَطَفَتِ السَّلْمٰى وَردَةً حَمْرَآءَ، مَرَرْتُ بِأَخِيْ، الرِّجَالُ يَأْكُلُوْنَ التُّفَاحَاتِ، ضَاعَتِ الْعَصَا، وَاذْكُرْ عِبَادَنَا إِبْرَاهِيْمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوْبَ، أُوْلِي الْأَيْدِيْ وَالْأَبْصَارِ، فَاضَ دَمْعِيْ، اِضْرِبْ بِعَصَاكَ الْحَجَرَ، الرَّجُلُ الْقَاسِيْ مَكْرُوْهٌ، أَوْفِرُوْا اللُّحٰى وَاحْفُوا الشَّوَارِبَ، أُوْلٰئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَبِّهِمْ، حَلَبَتِ النِّسَاءُ الْبَقَرَاتِ، أَكْرَمْتُ الضُّيُوْفَ الْقَادِمِيْنَ، نَادَى الْمُنَادِيْ، طَارَتِ الْحَمَامَةُ السَّوْدَاءُ.

## بدانکه اعراب مضارع سه است

معرب په دوه قسمه دے: **(1)**اسم متمکن چه په ترکيب کښ واقع وي، **(2)**او هغه فعل مضارع چه دَ نون دَ جمع مؤنث او نون تاکيد نه خالي وي، دَ اسم متمکن شپاړس قسمونه خو په تفصيل سره بيان شو، مصنف عليه الرحمة

دلته دَ فعل مضارع اعراب ذکر کوي، ليکن اول ترينه يو څو خبرے يادول پکار دي.

اولنۍ خبره: دَ فعل مضارع اعراب درے دي: رفع، نصب، جزم.

رفع: هغه اعراب دے چه دَ عامل رافع دَ وجه نه راشي او دَ فعل مضارع عامل رافع عامل معنوي وي، عامل معنوي مطلب دا دے چه فعل مضارع دَ عوامل جوازم او عوامل نواصب نه خالي وي لکه يَضْرِبُ.

نصب: هغه اعراب دے چه دَ عوامل نواصب دَ وجه نه وي او دَ فعل مضارع عامل نواصب څلور دي: أَنْ، لَنْ، كَيْ، إِذَنْ.

جزم: هغه اعراب دے چه َ عوامل جوازم دَ وجه نه وي او دَ فعل مضارع عوامل جوازم پنځه دي، إِنْ، لَمْ، لَمَّا، لَامِ امر، لائے نهي.

دويمه خبره: دَ فعل مضارع ټولے څوارلس صيغے دي چه دوه پکښې مبني دي، يَضْرِبْنَ، تَضْرِبْنَ، او اووه صيغے داسے دي چه په آخير کښې ئې نون اعرابي او ضمير بارز وي لکه يَضْرِبَان، تَضْرِبَانِ، تَضْرِبَانِ، تَضْرِبَانِ، يَضْرِبُوْنَ، تَضْرِبُوْنَ، تَضْرِبِيْنَ، او پنځه صيغے داسے دي چه په آخير کښې ئې نون اعرابي او ضمير بارز نه وي لکه يَضْرِبُ، تَضْرِبُ، تَضْرِبُ، أَضْرِبُ، نَضْرِبُ.

دريمه خبره: فعل مضارع په دوه قسمه ده: صحيح او معتل.

صحيح: هغه ته وائي چه دَ لام کلمه په مقابله کښې حرف علت نه وي لکه يَنْصُرُ، يَضْرِبُ.

نوټ: دا تعريف دَ نحويانو حضراتو په نزد دے.

معتل: هغه ته وائي چه دَ لام کلمه په مقابله کښې حرف علت وي که واؤ وو نو معتل واوي ورته وائي، مثال: يَدْعُوْ. که ياء وه نو معتل يائ ورته وائي، مثال: يَرْمِيْ. که الف وو نو معتل الفي ورته وائي، مثال: يَرْضٰى.

## فعل مضارع دَ اعراب په اعتبار سره په خلور قسمه ده

(1) دَ فعل مضارع هغه پنځه صيغې چه په آخير کښې ئې نون اعرابي او ضمير بارز نه وي او دَ صحيح نه وي نو حالت رفعي به ئې په ضمه لفظې سره وي لکه هُوَ يَضْرِبُ، هِيَ تَضْرِبُ، أَنْتَ تَضْرِبُ، أَنَا أَضْرِبُ، نَحْنُ نَضْرِبُ. او حالت نصبي به ئې په فتحه لفظي سره وي. لَنْ يَّضْرِبَ، لَنْ تَضْرِبَ، لَنْ تَضْرِبَ، لَنْ أَضْرِبَ، لَنْ نَضْرِبَ. او حالت جزمي به ئې په جزم يعني په سکون سره وي، لَمْ يضربْ، لم تضرِبْ، لَمْ تضربْ، لَمْ أضربْ، لم نضربْ.

ترکيب: لم يضرب: صيغه واحد مذکر غائب فعل جحد معلوم حالت جزمي ئې په جزم سره هو ضمير ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعليه خبريه.

دَ فعل مضارع هغه پنځه صيغې چه په آخير کښې ئې نون اعرابي او ضمير بارز نه وي که بيا دَ معتل واوي يا معتل يائي نه وي نو حالت رفعي به ئې په ضمه تقديري سره وي، دَ حالت رفعي معتل واوي مثالونه: هُوَ يَغْزُوْ، هِيَ تغزُوْ، أَنت تغزُوْ، أَنا أَغْزُوْ، نَحْنُ نَغْزُوْ، دَ حالت رفعي معتل يائي مثالونه: هُوَ يَرْمِيْ، هِيَ تَرْمِيْ، أَنْتَ تَرْمِيْ، أَنَا أَرْمِيْ، نَحْنُ نَرْمِيْ.

حالت نصبي به ئې په فتحه لفظي سره وي، دَ معتل واوي مثالونه: لَنْ يَّغْزُوَ، لَن تغزُوَ، لن تغزُوَ، لَنْ أَغزُوَ، لَنْ نَغْزُوَ، دَ معتل يائي مثالونه: لَنْ يَّرْمِيَ، لن ترميَ، لن ترميَ، لن أرميَ، لن نرمِيَ.

حالت جزمي به ئې سقوط دَ حرف علت سره وي، دَ معتل واوي مثالونه: لَمْ يَغْزُ، لَم تغْزُ، لم تغزُ، لم أَغْزُ، لم نَغْزُ، دَ معتل يائي مثالونه: لَمْ يَرْمِ، لم ترْمِ، لم ترْمِ، لم أرْمِ، لم نَرْمِ.

ترکيب: لم يغز: لم يغز صيغه واحد مذکر غائب فعل جحد معلوم حالت جزمي په سقوط دَ حرف علت سره، هو ضمير مستتر ئې فاعل، فعل سره

دَ فاعل نه جمله فعليه خبريه.

فعل مضارع هغه پنځه صيغې چه په آخير كښ نون اعرابي او ضمير بارز نه وي او چه دَ معتل الفي نه وي، نو حالت رفعي به ئې په ضمه تقديري سره وي، هُوَ يَرْضٰى، هِيَ تَرْضٰى، أَنْتَ تَرْضٰى، أَنا أَرْضٰى، نَحْنُ نرضٰى.

حالت نصبي به ئې په فتحه تقديري سره وي، لن يَّرْضٰى، لن ترضٰى، لن ترضٰى، لن أرضٰى، لن نرضٰى.

حالت جزمي به ئې په سقوط دَ الف سره وي، لم يَرْضَ، لَمْ تَرْضَ، لم تَرْضَ، لَمْ أَرْضَ، لَمْ نَرْضَ.

تركيب: لن يَّرْضٰى: صيغه واحد مذكر غائب فعل نفي مؤكد بلن ناصبه تاكيديه حالت نصبي په فتحه تقديري سره، هو ضمير ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعليه خبريه.

دَ فعل مضارع هغه اووه صيغې چه په اخير كښ ئې نون اعرابي او ضمير بارز وي خواه كه صحيح وي كه معتل واوي يا معتل يائي يا معتل الفي، حالت رفعي به ئې دَ نون اعرابي به باقي پاتې كيدو سره وي، حالت رفعي چه د صحيح نه وي،مثالونه: هُما يضربان، هما تضربان، أنتما تضربانِ، أنتما تضربانِ، هم يضربون، أنتم تضربون، أنتِ تضربِيْنَ.

دَ معتل يائي مثالونه: هما يَرْمِيَانِ، هما ترميان، أنتما ترميان، أنتما ترمِيَانِ، هم يرمُون، أنتم ترمُونَ، أنتِ تَرمِيْنَ.

دَ معتل واوي مثالونه: هما يغْزُوَان، هما تَغْزُوانِ، أنتما تغزوانِ، أنتما تغزوانِ، هم يغزُوْنَ، أنتم تغزونَ، أنتِ تَغْزِيْنَ.

دمعتل الفي مثالونه: هُمَا يَرْضَيَانِ، هما ترضَيَان، أنتما ترضيان، أنتما ترضيان، هم يرضُوْنَ، أنتم ترضون، أنتِ تَرْضِيْنَ.

حالت نصبي به ئې په سقوط دَ نون اعرابي سره وي، دَ حالت نصبي

مثالونه دَ صحيح نه، لن يضْرِبَا، لن تضربا، لن تضربا، لن تضربا، لن يضربوا، لن تضربوا، لن تضرِبِيْ.

د معتل يائي مثالونه: لن يَرْمِيَا، لن ترميا، لن ترميا، لن ترميا، لن يَّرْمُوا، لن ترمُوا، لن ترمي.

دَ معتل واؤي مثالونه: لن يَغزُوَا، لَنْ تَغزُوَا، لن تغزُوَا، لن تغزُوَا، لن يغزُوْا، لن تغزُوْا، لَنْ تَغْزِيْ.

د معتل الفي مثالونه: لَن يَّرْضَيَا، لن ترضَيَا، لن ترضيا، لن ترضَيا، لن يَّرضَوْا، لن ترضَوْا، لن تَرْضَيْ.

حالت جزمي به ئې په سقوط د نون اعرابي سره وي، د صحيح مثالونه:

لم يضْرِبَا، لم تضربا، لم تضربا، لم تضربا، لم يضربوا، لم تضربوا، لم تضْرِبِي.

د معتل يائي مثالونه: لم يَرْمِيَا، لم تَرْمِيَا، لم ترميا، لم ترميا، لم يرمُوْا، لم ترمُوْا، لم ترمِيْ.

ترکيب: لم يرميا: صيغه تثنيه مذكر غائب فعل جحدحالت جزمي په سقوط دَ نون اعرابي سره هو ضمير مستتر ئې فاعل، فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله فعليه خبريه.

د معتل واؤي مثالونه: لم يَغْزُوَا، لَمْ تَغْزُوَا، لم تغزوَا، لم تغزُوَا، لم يغزُوْا، لم تغزُوْا، لم تغْزِيْ.

د معتل الفي مثالونه: لم يَرْضَيَا، لم ترْضَيَا، لم ترضيا، لم ترضيا، لم يرضَوْا لم ترضَوا، لم ترضَيْ.

## تمرين (17)

دَ مضارع قسمونه او وجوه اعراب بيان کړي ترجمه او ترکيب ئې بيان کړي.

يُخَادِعُوْنَ اللّٰه، الرَّجُلُ لَمَّا يَقْضِ دَيْنَه، أُوْلٰئِكَ الْفَلَّاحُوْنَ لَنْ يَبِيْعُوْا الْقُمْحَ بِالْأُرُزِّ، لَمْ يَجِدْ زَيْدُ نِ الْمَاءَ، هُوَ يَخْفٰى مِنْكَ، يَنْهَى اللّٰهُ عَنِ الْكِذْبِ وَأَنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ، أوْلٰٓئك الْكَافِرُوْنَ لَمْ يُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ، لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُوْنَ، لَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ، زَيْنَبُ تَطُوْفِيْنَ، لَنْ أَنْسٰى وَعْدَكَ، لَن يَّخْلقُوْا ذُبَابًا، يَسُرُّنِي أنْ يَّصْفُوَا الْجَوُّ، نُحِبُّ أَنْ يَّجْرِيَ الْمَاءُ، تَشْتَهِي الطَّعَامَ، لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُوْنِه إِلٰهًا، نَكْتُبُ الدُّرُوْسَ، يَأْكُلُ الهِرُّ الطَّعَامَ، لَنْ أَقُوْمَ، لَمْ نَسْتَرِقْ.

فائده: کوم الف او واؤ چه دَ اسم فاعل او مفعول دَ تثنيه او جمع په آخير کښې وي لکه ضَارِبَانِ، ضارِبُونَ دا محض علامت دَ تثنيه او جمع دے ضمير نه دے.

## فصل بدانکه عوامل اعراب سه است

مصنف عليه الرحمة دَ معمول دَ بيان نه فارغ شو اوس دَ عامل بيان ذکر کوي، فرمائي چه عامل په دوه قسمه دے: (1)عامل لفظي، (2)عامل معنوي

عامل لفظي تعريف: چه تلفظ پرے کيږي يا چه په نظر راځي.

عامل معنوي تعريف: چه تلفظ پرے نه کيږي يا چه په نظر نه راځي يا چه په لفظ کښې موجود نه وي خو اثر ئې موجود وي لکه مبتداء او خبر زيدٌ قائمٌ.

عامل لفظي په درے قسمه دے: (1)حروف عامله، (2)افعال عامله، (3)اسمائے عامله.

مصنف عليه الرحمة دا په درے بابونو کښې ذکر کوي او په اولني باب کښې دوه فصلونه ذکر کوي، په اولني فصل کښې به د هغه حروفو ذکر کوي چه په اسم کښې عمل کوي دا حروف عامله په پنځه قسمه دي.

مصنف اول حروف جاره ذکر کوي.

جر: په لغت کښې راښکلو ته وائي او په اصطلاح کښې : جر واضع وضع کړے دے دديي دپاره چه د فعل يا شبهه فعل معنيٰ خپل مدخول ته راکاږي مثال :مَرَرْتُ بِزَيْدٍ .

## دحروف جاره تفصيل

اولنۍ حروف: جاره ټول اوولس دي چه په دي شعر کښې مذکور دي:

با وتا وكاف ولام وواؤ منذ ومذ خَلا

رُبَّ حاشا مِنْ عَدا فِي عَنْ عَلٰى حتّٰى إِلٰى

دويمه خبره : دَ حروف جاره تفصيل: (1)اولنۍ "ب" ده په معنٰى دَ مدد طلب کولودپاره راځي لکه کتبتُ بالقلَمِ، "ب" بمعنٰى عوض لکه بِعتُ الجَمَلَ بسِتِّينَ درهماً، "ب" بمعنٰى قَسَم باللّٰهِ، کومه "ب" چه په معنٰى دَ قسم راځي عامه ده په اسم ظاهر باللّٰهِ او ضمير دواړو باندے داخليږي بِه.

(2)دويم "مِنْ" دے، مِنْ دَ ابتداء فعل دَ بيانولو لپاره راځي لکه سرتُ مِنَ الْبَصْرَةِ إِلَى الْكُوْفَةِ.ا

"مِن" کله په معنٰى دَ تبعيض سره راځي لکه: وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ. "من"بيانيه هم راځي لکه فَاجْتَنِبُوْا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ.

(3،4)إلٰى او حتّٰى: د انتهائے مدت لپاره راځي مګر "إلٰى" په اسم ظاهر او ضمير دواړو داخليږي لکه إِلَى اللهِ، إليه. او "حتّٰى" صرف په اسم ظاهر داخليږي لکه أَكَلْتُ السَّمَكَةَ حَتّٰى رَأْسِهَا.او دا په ضمير نه داخليږي.

(5) لام:داختصاص لپاره راځي يعني يو څيز دَ بل څيز سره خاص کول،مثال: المالُ لزيدٍ، او لام په اسم ظاهر او ضمير دواړو باندے داخليږي ليکن فرق دا دے چه په اسم ظاهر داخل شي نو مکسور به وي لکه لِزَيدٍ،

او چه په ضمير داخل شي نو مفتوح به وي لکه لَهُوَ. البته که په يائي متکلم داخل شي نو دَ ياء دَ مناسبت دَ وجه نه به مکسور وي لکه اَلمَالُ لِيْ.

**(6)** فِيْ: د ظرفيت لپاره راځي، زيدٌ في الدَّارِ.

**(7)** رُبَّ: کله دَ تقليل لپاره راځي لکه رُبَّ رَجُلٍ كَرِيمٍ لقِيْتُه. او کله دَ تکثير لپاره راځي لکه رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِيْن.

**(8)** واؤ: هميشه دَ قسم لپاره راځي لکه واللّٰهِ لأَضْرِبَنَّ زَيْدًا. ليکن په اسم ظاهر داخليږي په ضمير نه داخليږي.

**(9)** تاء: هم دَ قسم لپاره راځي تااللّٰهِ، ليکن دا دَ لفظ الله سره خاص ده تاللّٰهِ لأَضْرِبَنَّ زَيْدًا.

**(10)** عَنْ: مُجاوزت لپاره راځي لکه رَمَيْتُ السَّهْمَ عَنِ القَوْسِ. يعني مفعول دَ مدخول خپل نه جدا کوي او بل ځيز ته ئي مائله کوي او رَسَوِي، مثال: ما غشے دَ ليندے نه ښکار طرفته اوؤيشتلو.

دا په دوه قسمه دے: **(1)** چه خپل مدخول خالي کړي سره دَ زائل کيدو نه، مثال: رميتُ السَّهْم عنِ الْقَوْسِ، **(2)** چه خپل مدخول نه ئې جدا کړي بغير دَ زائل کيدونه، مثال: أَخذْتُ العلمَ عَنِ الأُسْتَاذ.

**(11)** عَلٰى:د استعلاء لپاره راځي، بلندي.

استعلاء په دوه قسمه ده، استعلاء حقيقي لکه زيدٌ على السَّطْحِ، او استعلاء مجازي لکه يدُ اللّٰهِ عَلَى الجماعةِ.

**(12)** کاف:د تشبيه لپاره راځي لکه زيدٌ کالأَسَدِ. او کاف زائد هم راځي کما في قوله تعالى: ليس كمثله شيء.

**(13،14)** مُنذ او مذ: تفصيل ئې مخکښ ذکر شوے دے.

**(15،16،17)** حاشا، خلا، عَدا: دا درے واړه دَ استثناء لپاره راځي چه کله ترينه ما بعد منصوب وي لکه جاءني القومُ خلا زيدًا وعَدا زيدًا، او چه کله

ترینه مابعد مجرور وي نو بیا به حروف جاره وي لکه جاءني القومُ خَلا زیدٍ وعدا زیدٍ وحاشا زیدٍ.

دَ مستثنٰی تعریف: چه دلالت وکړي په دے خبره چه دَ کوم حکم نسبت دَ إِلَّا نه ماقبل ته شوے دَ هغه حکم نسبت دَ إِلَّا مابعد طرف ته نه دے شوے، لکه جاءني القوم إلّا زیدا.

دریمه خبره:دحروف جاره عمل: حروف جاره په اسم داخلیږي او آخر ته ئي جر ورکوي مثال: بِزَیدٍ

فائده: حروف جاره صرف په اسم داخلیږي او اسم ته جر ورکوي، خواه که اسم حقیقي وي او که اسم تاویلي وي لکه أُرِیْدُ أن تَقُوْمَ، او که چرته په اسم غیر متمکن داخل شي نو دَ مبني دَ وجه نه به محلاً مجرور وي لکه مررتُ بالَّذِي فِي الدار.

فائده: دَ حروف جاره متعلّق به کله په لفظونو کښې مذکور وي او کله به محذوف وي، چه متعلق ئي محذوف وي د هغي مثال: زیدٌ فِي الدَّار، دَ في الدَّار متعلّق چه ثَبَتَ یا ثابِتٌ دے محذوف دے بناء بر اختلاف.چه متعلق ئي مذکور وي د هغي مثال: مَرَرتُ بِزَیدٍ که متعلّق ئې په لفظونو کښې مذکور وي نو بیا جار مجرور ته ظرف لغو وائي او که متعلّق ئې مقدّر وي نو بیا جار مجرور ته ظرف مستقر وائي.

فائده: حرف جر ته خَافِض هم وائي، مثال: الحمد لله حمدَ الشاکرین. دلته "حمدَ" منصوب دے بنزع الخافض، اصل کښې "کحمد" وو.

## تمرین (18)

دحروف جاره عمل او دَ جار مجرور متعلق نشاندهي وکړې، ترجمه او ترکیب وکړې.

يَأْتِي السَّمَكُ مِنَ الْبَحْرِ، يَذْهَبُ الْخَوْفُ عَنِ الطِّفْلِ، يَسْقُطُ الثَّمَرُ عَلَى الأَرْض، دَخَلَ الْمُجْرِمُ فِي السِّجْنِ، يَدُ اللّٰهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ، اَلْوَحْدَةُ خَيْرٌ مِّنْ جَلِيْسِ السُّوْءِ، إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ، اِشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ بِالْفَرَسِ، جَاءَنِي الْقَوْمُ حَاشَا زَيْدٍ، واللّٰهِ لَأَشْرَبَنَّ اللَّبَنَ، أُدْخُلُوْا فِي أُمَمٍ، لِإِمَامِ الْمَسْجِدِ حُجْرَةٌ كَبِيْرَةٌ، كَتَبْتُ بِالْقَلَمِ، سِرْتُ الْبَلَدَ حَتَّى السُّوْقِ، مَا أَكْرَمْتُهُ مُذْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ، رُبَّ كَرِيْمٍ لَقِيْتُهُ، وَقَعَ الْحَرِيْقُ فَاحْتَرَقَ كُلَّ مَتَاعٍ عَدَا الْكُتُبِ، مُنْذ كم عَامٍ تَسْكُنُ فِي هذَا الْبَلَدِ، الْغِيْبَةُ أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا، خَالِدٌ كَالْأَسَدِ، رَأَيْتُ قَوْمًا عَدَا عَمْرٍو، أَكَلْتُ السَّمَكَةَ حَتّٰى رَأْسِهَا، مَا رَأَيْتُه مُنْذ يَوْمِنَا، أَقِمِ الصَّلوٰةَ لِدُلُوْكِ الشَّمْسِ، تَرْخُمُ الدَّجَاجَةُ عَلَى الْبِيْضِ حَتّٰى عِشْرِيْنَ يَوْمًا، سَلَامٌ هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجرِ، تَا اللّٰهِ لَأَضْرِبَنَّ زَيْدًا.

## دوم حروف مشبه بالفعل وآن شش است

## حروف مشبه بالفعل

إِنَّ، أَنَّ، كَأَنَّ، لٰكِنَّ، لَيْتَ، لَعَلَّ.

حروف مشبه ټول شپږ دي چه په دے شعر کښې جمع دي:

إِنَّ با أَنَّ كَأَنَّ لَيْتَ لٰكِنَّ لعلَّ      ناصب اسماً ورافع در خبر زد ما ولا

**د حروف مشبه بالفعل عمل:** دا په جمله اسميه باندے داخليږي اولني جزء ته نصب ورکړي خپل اسم ئې جوړ کړي او دويم جزء ته رفع ورکړي ځان له ئې خبر جوړ کړي، زيدٌ قائمٌ، إِنَّ زَيدًا قائمٌ.

**دَ حروف مشبه بالفعل وجه تسميه:** ديته حروف مشبه بالفعل ځکه وائي چه فعل سره ئې مشابهت دے لفظًا هم، معنًا هم، عملاً هم.

څنګه چه فعل فاعل ته رفع او مفعول ته نصب ورکوي نو دا هم دغسه عمل کوي نو ځکه ورته حروف مشبه بالفعل وائي.

لفظي مشابهت ئي بيا په درے قسمه دے: (1) فعل ماضي سره مشابهت دے، څنګه چه ماضي مبني برفتحه وي نو دا هم مبني برفتحه وي، (2)فعل ثلاثي او رباعي وي دا حروف هم بعض ثلاثي او بعض رباعي دي، (3)دا بلکل دَ فعل په وزن دي. إِنَّ: فِرَّ، أَنَّ: فَرَّ، كَأَنَّ: ضَرَبْنَ، لٰكِنَّ: ضَارِبْنَ، لَيْتَ: لَيْسَ، لَعَلَّ: فَعَلَّ.

معنوي مشابهت: إِنَّ وَأَنَّ حَقَّقْتُ په معنٰى، كَأَنَّ شَبَّهْتُ په معنٰى، لَيْتَ تَمَنَّيْتُ په معنٰى، لعَلَّ تَرَجَّيْتُ په معنٰى، لٰكِنَّ اِسْتَدْرَكْتُ په معنٰى.

د حروف مشبه بالفعل معنے: إِنَّ او أَنَّ تحقيق لپاره راځي چه دَ دے خبر دَ اسم لپاره يقينًا ثابت دے إِنَّ زَيْدًا قائِمٌ.

كَأَنَّ: تشبيه لپاره راځي لکه كأَنَّ زَيدًا أَسَدٌ ګويا زيد زمرے دے.

لٰكِنَّ: استدراك لپاره راځي يعني چه دَ اولني کلام نه کوم وهم پيدا شوے وي دَ هغې دَ ختميدو لپاره راځي،مثلا زيد او عمرو په مابين کښې داسې تعلقات وو چه مدرسے ته به يوځائے راتلل او تلل نو چا ووئيل ذَهَبَ زَيْدٌ نو وهم پيدا شو چه عمرو به هم تللے وي حالانکه هغه نه وو تللے نو په دې موقعه داسې ووئيل ذَهَبَ زَيْدٌ لٰكِنَّ عَمْروًا لَمْ يَذْهَبْ.

ليت:د تمني لپاره راځي يعني دَ اسم لپاره دَ خبر دَ حصول آرزو کوي، مثال: لَيْتَ الشَّبَابَ يَعُوْدُ يَوْمًا.

لَعَلَّ: اميد لپاره راځي يعني دَ دے خبرے اميد ظاهر کوي چه دَ اسم لپاره به خبر حاصل وي لکه لَعَلَّ عَمْروًا غَائِبٌ.

فائده: په کلام عرب کښې بعض داسے عوامل دي چه په جمله اسميه داخليږي او خپل ځان له ئې معمول جوړه وي او ديته نواسخ ابتداء وائي،

مثال: زيدٌ قائمٌ: إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ، إِنَّ په زيد كښې درے قسمه تبديلي وكړه زيدٌ مرفوع وو منصوب ئې كړو، زيدٌ مبتداء وه اوس ئې ځان له اسم جوړكړو زيدٌ كښې عامل معنوي وو اوس ئې عامل لفظي شو او په قائِمٌ كښې ئې يوه تبديلي وكړه چه اول ئې عامل معنوي وو او اوس ئې عامل لفظي شو.

## تمرين(19)

إِنَّ الْحَقَّ وَاضِحٌ، اَلْأُمُّ مُحْتَجِبَةٌ وَلٰكِنَّ الْبِنْتَ مُتَبَرِّجَةٌ، كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ، إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا، اِعْلَمُوْا أَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ، اَلْأَبُ تَاجِرٌ لٰكِنَّ الْاِبْنَ طَبِيْبٌ، لَعَلَّ الْمِصْبَاحَ مُضِيْءٌ، كَأَنَّ أُذْنَي الْفِيْلِ مِرْوَحَتَانِ، لَيْتَكُمْ تَجْتَهِدُوْنَ، إِنَّ النَّظَافَةَ وَاجِبَةٌ، سَاجِدٌ مُجْرِمٌ لٰكِنَّهُ مُعْتَرِفٌ، كَأَنَّ الْجَهْلَ ظَلَّامٌ، الدَّوَاءُ مُرٌّ لٰكِنَّه نَافِعٌ، لَيْتَ الشَّارِعَ وَاسِعٌ، اَلْكِتَابُ جَيِّدٌ لٰكِنَّ الثَّمَنَ غَالٍ، لَيْتَ الْفَجْرَ طَالِعٌ، إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، كَأَنَّه هُوَ.

## سوم ما ولا المشبهتان بلَيس

دلته به درے خبرے ذكر كيږي.

اولنئ خبره: ديته ما ولَا المشبهتان بلَيْس ولے وائي؟

جواب: دَ لَيْسَ سره ئې مشابهت دے په دوو څيزونو كښې: **(1)** څنګه چه لَيس دَ نفي لپاره راځي دا هم دَ نفي لپاره راځي، **(2)** څنګه چه ليس په جمله اسميه داخليږي، اولني جزء ته رفع وركړي نو ځان له ئي اسم جوړ كړي او دويم جزء ته نصب وركړي ځانله ئې خبر جوړ كړي، ليس زيدٌ قائمًا، داهم اولني جزء ته رفع وركړي ځان له ئي اسم جوړ كړي او دوئم جزء ته نصب وركړي ځان له ئي خبر جوړ كړي مثالونه: مَا رَجُلٌ قَائمًا، لَا رجُلٌ قائمًا.

دويمه خبره: دَ مَا او لَا عمل: دَ ليس سره ئې مشابهت دے څنګه عمل چه ليس کوي هم دغسي عمل "ما" او "لا" کوي.

دريمه خبره: مَا او لَا کښې فرق:لفظ مَا په معرفه او نکره دواړو داخليږي، مثال: مَا زيدٌ قائمًا، ما رجلٌ قائمًا. او لَا صرف په نکره داخليږي په معرفه نه داخليږي. لَا رجُلٌ قائمًا، دا قول دَ اهل حجاز دے چه ما او لا عمل کوي او بنو تميم وائي چه مَا او لَا عمل نه کوي.

دليله هذا: دا شعر دَ زهير شاعر دے:

وَمُهَفْهَفٍ كَالْغُصْنِ قُلْتُ لَه انْتَسِب

فَأَجَابَ مَا قَتَلُ الْمُحِبِّ حَرَامٌ

فائده: که لفظ مَا سره جار مجرور متصل راشي نو دا به ورلره خبر مقدم وي لکه مَاالهم، لهم خبر مقدم دے.

فائده: که دَ لفظ مَا دَ خبر په ابتداء کښې حروف جاره راشي نو اکثر زائد وي لکه مَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطٰنٍ رَّجِيمٍ.

## چهارم لا لنفي الجنس

دلته به دوه خبرے وي، اولنۍ خبره: دَ لائے نفي جنس مطلب: دَ لائے نفي جنس مطلب دا دے چه په دے خبره دلالت وکړي چه خبر دَ مبتداء دَ تمامو افرادو نه منفي دے لکه لَا رَجُلَ فِي الدّارِ، ترجمه: په کور کښې جنس سړے نشته.

دَ لائے نفي جنس عمل: ليکن دَ دينه مخکښې يو خبره پيژاندل ضروري دي، هغه دا چه مفرد هميشه دَ څلورو څيزونو په مقابله کښې راځي: (1) دَ مرکب په مقابله کښې، (2) دَ تثنيه او جمع په مقابله کښې،(3) دَ جمله په مقابله کښې، (4) دَ مضاف او مشابه بالمضاف په مقابله کښې، او دلته مفرد دَ

مضاف مشابه بالمضاف په مقابله کښې دے.

دويمه خبره: لائے نفي جنس عمل: خبر به ئې هميشه مرفوع وي او دَ اسم ئې څو حالات دي:

**(1)**چه اسم ئې مضاف وي نو په دے صورت کښې به منصوب وي لکه لَا غُلامَ رجلٍ ظريفٌ فِي الدار، لَا غلامَ رجُلٍ قائمٌ.

**(2)**يا به ئې اسم نکره مفرد وي نو په دے صورت کښې به ئې اسم مبني بر فتحه وي لکه لَا رجُلَ فِي الدّار، لَا مُسْلِمَانِ قَائِمانِ.

**(3)**يا به ئې اسم معرفه وي نو په دے صورت کښې به دويمه لَا سره دَ معرفه ذکر کول ضروري وي او لَا به مُلغٰى عن العمل وي يعني لَا به عمل نه کوي او اسم به ئې مرفوع وي د ابتداء له وجه نه. لَا زيْدٌ عندي ولا عمرٌو، لا زيدٌ في الدّار ولا عمرٌو.

چه کله په کلام کښې دوه لَا سره دَ دوو نکرو مفردو وي نو بيا پکښې پنځه وجه وئيل جائز دي:

**(1)**دَ لَا دواړه اسمونه مبني برفتحه، دليل: لَاحوْلَ وَلا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، معناه لَا حوْلَ عَنِ الْمَعْصِيّةِ ولا قُوَّةَ عَلَي الطَّاعَةِ إِلَّا بتوفِيْقِ اللّٰهِ.

توجيه: لا حول ولا قوَّةَ موْجُودانِ إِلّا باللّٰهِ په دے صورت کښې دواړه لائے نفي جنس دي او اسم به ئې مبني برفتحه وي.

**(2)**چه دَ لَا دواړه اسمونه مرفوع وي نو لَا به مشابه بليس وي او دَ لَا مشابه بليس اسم مرفوع وي لکه لَاحوْلٌ وَلَا قُوَّةٌ إِلَّا باللّٰهِ.

توجيه**1**: چه عطف دَ مفرد په مفرد شي: لَا حوْلٌ ولا قُوَّةٌ موجُوْدَيْنِ إِلَّا باللّٰهِ.

توجيه**2**: چه "لَا" ملغٰى عن العمل شي او عطف دَ مفرد په مفرد شي، لَا حوْلٌ ولا قوَّةٌ موجُوْدَانِ إِلَّا بِاللّٰهِ از قبيل: لَا بيعٌ فيه ولا خُلَّةٌ.

**(3)**چه اولنے اسم مبني برفتحه او دويم مرفوع وي لکه لَا حوْلَ ولا قوَّةٌ إِلَّا

باللّٰهِ، اولنئ "لَا" لائے نفي جنس ده او دويمه لَا مشابه بليس، عطف دَ جملے په جملے.

توجيه: لَا حول مَوْجُودٌ إِلَّا باللّٰهِ ولا قُوَّةٌ موجودًا إِلَّا باللّٰهِ.

**(4)**چه اولنے اسم مرفوع وي او دويم مبني برفتحه، لا حولٌ موجودًا إِلَّا باللّٰهِ ولا قوَّةَ موجودٌ إِلَّا بالله.

اولنئ "لَا"، "لَا" مشابه بليس او دويمه "لَا" لائے نفي جنس.

**(5)**چه اولنے اسم مبني برفتحه وي او دويم منصوب وي، لا حوْلَ ولا قوَّةً موجُوْدَانِ إِلَّا باللّٰهِ (عطف دمفرد په مفرد) اولنئ "لا" لائے نفي جنس ده او دويمه "لا" زائد ده او قوةً ځکه منصوب دے چه عطف دے دَ "حولَ" په محل باندے او حولَ دَ محل په اعتبار سره منصوب دے.

فائده: لائے نفي جنس علامات: په مصدر: لَا إِلٰهَ إِلَّا الله، اسم فاعل: لَا هَادِيَ لَه، اسم مفعول: لَا مَعْبُوْدَ إِلَّا هُوَ، صفت مشبه: لَا حَكِيْمَ إِلَّا ذُوْ تَجْرِبَةٍ باندے چه كومه "لا" داخليږي دا عام طور باندے لائے نفي جنس وي.

## تمرين (20)

مَا و لَا المشبهتان بليس او لائے نفي جنس په عمل كښې فكروكړي، ترجمه وتركيب وكړې

وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ، لَا عَقْلَ كَا التَّدْبِيْرِ، لَا لَبَنٌ عِنْدَكُمْ وَلَا سَمَنٌ، وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطٰنِ الرَّجِيْمِ، لَا أَبُ لِحَامِدٍ وَلَا أُمٌّ، لَا رِجَالَ فِي الْغُرْفَةِ، وَمَا صَاحِبُكُمْ بِمَجْنُوْنٍ، لَا شَكَّ فِي كَلَامِكَ، لَا رَجُلٌ غَافِلًا عَنْكُمْ، لَا زَيْدٌ فِي السُّوْقِ وَلَا عَمْرٌو، لَا عَلِيٌّ عِنْدَنَا وَلَا سَاجِدٌ، لَا صَاحِبَ جُوْدٍ مَذْمُوْمٌ، مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ، لَا كِتَابٌ عِنْدَكَ وَلَا مِرْسَمٌ، مَا هُمْ بِخَارِجِيْنَ

مِنَ النَّارِ، لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ، لَا حَامِدٌ مُسَافِرٌ وَلَا أَبُوْهُ، لَا رَجُلَ أَفْضَلَ مِنْ مُحَمَّدٍ، لَا صَرُوْرَةَ فِي الْإِسْلَامِ، لَا شَاهِدَ زُوْرٍ مَقْبُوْلٌ، لَا شَجَرَ فِي الطَّرِيْقِ، لَا فَرَسَ زَيْدٍ سَرِيْعٌ، مَا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ، لَا مُؤْمِنٌ نَادِمًا.

## پنجم حروف ندا وآن پنج است يَا، أَيَا، هَيَا، أَيْ، همزه مفتوحه

## حروف ندا

ندا په لغت کښې اواز کولو ته وائي.

نِدا په اصطلاح کښې: هُوَ الدُّعَاءُ بِالْحُرُوْفِ الخَاصةِ، مثال: يَا اللّٰهُ، يا زيد، يا رجل، دَ پښتو تعريف ئې په جمله انشائيه کښې ذکر شوے دے.

دلته به دري خبري وي: اولنئ خبره: حروف نِدا پنځه دي: يَا، أَيَا، هَيَا، أَيْ، همزه مفتوحه.

أَي او همزه مفتوحه دَ قريب لپاره راځي، أَيَا، هَيَا دَ بعيد لپاره راځي او يَا عامه ده دَ قريب او بعيد دواړو لپاره راځي.

دويمه خبره: چرته چه حرف نِدا وي هلته به څلور څيزونه وي: **(1)**مُنادِي **(2)**مُنادٰی، **(3)**حرفِ نِدا، **(4)**مقصود بالنداء يا جواب نِدا.

دريمه خبره: دَ حروفِ نِدا عمل: مُنادٰی به هميشه منصوب وي خو نصب به کله لفظي وي او کله تقديري او کله محلي بيا دَ نصب لفظي درے صورتونه دي: **(1)**چه منادٰی مضاف وي يَا عبدَ اللّٰهِ، **(2)**چه منادٰی مشابه بالمضاف وي، يا طالعًا جبَلًا، مشابه بالمضاف مطلب دا دے چه منادٰی خو مضاف نه وي ليکن څنګه چه دَ مضاف معنٰی دَ مضاف اليه نه بغير په ذهن کښې نه راځي هم دغسے دَ مشابه بالمضاف معنٰی دَ دويمے کلمے نه بغير په ذهن کښې نه راځي، يَا طَالعًا جبلًا، يَا تَالِيًا دَرسًا.

(3)چه مناد۠ی نکره غیرمعینه وی چه ړوند سړے آواز وکړي يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ، یا واعظ وعظ کونکو ته وو وائي یا عاقلًا تذکر الْآخرة.

چه منادٰی مفرد معرفه وی نو مبني به وی په علامت دَ رفع سره کله به رفع په ضمه لفظي سره ظاهریږي لکه يَا زيدُ. کله به دَ الف په صورت کښ ظاهریږي لکه يَا زَيدَانِ، کله به دَ واؤ په صورت کښ ظاهریږي لکه يَا مُسلِمُونَ، کله به رفع په ضمه تقدیري سره وي لکه يَا موسٰی، يَا قَاضِيْ.

ترکیب: يَا زيدُ: يَا حرف ندا قائم مقام دَ أَدْعُوْ فعل، أَدْعُوْ صيغه واحد متکلم فعل مضارع معلوم، أَنَا ضمير مستتر ئې فاعل، زيدُ مبني بر علامت رفع منصوب محلاً مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول نه جمله فعليه انشائيه ندائيه.

دا ترکیب دَ صاحب نحو مير په نزد درست نه دے ځکه چه صاحب دَ نحو مير حروف نداء ته عامل وائي نو که فعل دَ أدعو راوباسو نو دا عمل خو فعل اوکړو حروفوخواونه کړو.

سوال: منادٰي ته بنا بر مفعول به نصب ورکولے شي دا دَ چا لپاره مفعول به ده.

جواب: (1) جمهور حضرات فرمائي عامل ئې فعل دے مضمر دے وجوبًا او منادٰی ئې مفعول به ده.

(2)ابو علي فارسي: چه عامل په منادٰی کښ حرفِ ندا ده چه قائم مقام دَ فعل ده.

(3)چه عامل په منادٰی کښ حرف ندا ده ليکن دا اسم فعل شي او عمل کوي (ليکن درست قول دَ جمهورو دے).

## تمرين(21)

دَ منادیٰ صورتونه بیان کړی، ترجمه او ترکیب وکړی.

يَا مُسْلِمُوْنَ لَا تَلْعَبُوْا، يَا بُنَيَّ ارْكَبْ مَّعَنَا، يٰٓأَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ اِرْجِعِيْ إِلٰى رَبِّكِ، أَعَبْدَ اللّٰهِ اِجْتَهِدْ فِي الصَّلوٰةِ، يٰٓأَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ قُمِ اللَّيْلَ، أَيْ أَشْرَفَ الْقَوْمِ، يَا قَارِئًا كِتَابًا، يَا سَاجِدُ خُذِ الْكِتَابَ، يَا نُوْحُ قَدْ جَادَلْتَنَا، يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ، أَيَا أَمَةَ بَكْرٍ، يَا تَالِيًا دَرَسًا، يَآ أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلٰى كَلِمَةٍ، يَا فَاطِمَةُ اِذْهَبِيْ إِلَى الْبَيْتِ، يَا نُوْحُ اهْبِطْ بِسَلَامٍ مِّنَّا، يٰٓأَيُّهَا النَّاسُ قَدَ فَرَضَ عَلَيْكُمُ الْحَجَّ، يَا قَارِئًا اٰيَةً، يَا فَتٰى اِسْمَعْ كَلَامِيْ، يٰبَاغِيْ لَا تَبْغِيْ، يَا رَجُلًا أَرِنِيْ طَرِيْقَةً، أَيَا مُؤْمِنُوْنَ، قَالَ يٰآدَمُ أَنْبِئْهُمْ بِأَسْمَائِهِمْ، يَآ لَاقِيًا أَبَاكَ، هَيَا كَرِيْمَ الْقَوْمِ، أَقَاضِيْ، أَيْ سَلْمٰى، يٰا صَاحِبَيِ السِّجْنِ، يَا صَبِيَّتَانِ لَا تَلْعَبَا، يَا قَارِئًا حَدِيْثًا.

دَ يَا قَارِئًا حَدِيْثًا ترکیب: يَا حرف ندا قائم مقام دَ أَدْعُوْ فعل، أَدْعُوْ صيغه واحد متکلم... أَنَا ضمير مستتر ئې فاعل، قارئًا مفرد منصرف صحيح صيغه واحد اسم فاعل هُوَ ضمير ئې فاعل، حديثًا مفرد منصرف صحيح ئې مفعول به، اسم فاعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به سره دَ منادیٰ مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به نه دا نِدا شوا دَ إِقرأ محذوف فعل لپاره، إقرأ فعل سره دَ خپل فاعل نه جمله انشائيه امريه دا مقصود بالنداء، جمله ندا سره دَ مقصود بالنداء نه دا جمله انشائيه ندائيه.

## فصل دوم در حرف عامله در فعل مضارع

## هغه حروف چه مضارع کښې عمل کوي

مصنف ﷫ دَ هغې حروف بحث کولو نه فارغ شو چه دَ معرب په اولني قسم اسم متمکن کښې ئې عمل کولو، دلته دَ هغې حروف بحث کوي چه دَ معرب په دویم قسم فعل مضارع کښې عمل کوي.

او دا په دوه قسمه دے: (1)حروف نواصب، (2)حروف جوازم.

## حروف نواصب

حروف نواصب څلور دي: چه په دے شعر کښې جمع دي:

أَنْ وَلَنْ پس کَيْ إِذَنْ این چار حرف معتبر

نصب مستقبل کنند این جمله دائم اقتضاء

دا څلور واړه په فعل مضارع داخلیږي لفظي او معنوي عمل کوي، لفظي عمل ئې مشترک دے چه فعل مضارع ته نصب ورکوي بیا دا نصب په پنځه صیغو کښې دَ فتحے په صورت کښې راځي او په اوو صیغو کښې دَ نون اعرابي په غرځیدو سره او دوو صیغو کښې عمل نه کوي.

پنځه صیغو ته نصب ورکوي، مثال: لَنْ یَّضْرِبَ، لَنْ تَضربَ، لن تضربَ، لن أضربَ، لن نضربَ.

او دَ اوو صیغو نه نون اعرابي غرځوي، مثال: لن یَّضربا، لن تضربا، لن تضربا، لن تضربا، لن یضربوا، لن تضربوا، لن تضربي.

او په دے دوه صیغو کښې هیڅ عمل نه کوي ځکه چه دا مبني دي، مثال: لن یَّضْرِبْنَ، لن تضْرِبْنَ.

البته دَ حروفو نواصبو معنوي عمل جدا جدا دے.

أَنْ په فعل مضارع باندے داخلیږي او په تاویل دَ مصدر سره ئې ګرځوي، مثال: أُرِيْدُ أَنْ تَقُوْمَ أَيْ أُرِيْدُ قِيَامَكَ.

لَنْ:په فعل مضارع داخلیږي او دَ مستقبل مؤکد منفي په معنٰى سره ئې ګرځوي، لَنْ يَّخْرُجَ زَيدٌ، ترجمه: زيد هرګز نه وځي.

كَيْ: دَ سببیت لپاره راځي یعني ماقبل ئې دَ مابعد لپاره سبب وي، مثال: أَسْلَمْتُ كَيْ أَدْخُلَ الْجَنَّةَ، دلته اسلام دَ دخول جنت لپاره سبب دے.

إِذَنْ: همیشه دَ کلام په جواب کښ راځي که کلام په لفظونو کښ موجود وي او که نه وي موجود ، مثال: چه څوک ستا نه تپوس وکړي أَنَا آتِيْكَ غَدًا ته په جواب کښ ووائي إِذَنْ أُكْرِمَكَ.

لفظ أَنْ چه څنګه په لفظونو کښ مذکور وي او په مضارع کښ عمل کوي هم دغسې چه په لفظونو کښ مذکور نه وي بلکه مقدر وي نو هم په فعل مضارع کښ عمل کوي او أَنْ به دَ شپږو ځیزونو نه بعد مقدر وي.

(1)حَتّٰى نه بعد به أَنْ مقدر وي چه حَتّٰى کله په فعل مضارع داخل وي، مثال: حَتّٰى أَدْخُلَ الْبَلَدَ أَيْ أَنْ أَدْخُلَ الْبَلَدَ.

(2)لام جحد نه بعد به أَنْ مقدر وي، لام جحد هغه وي چه دَ كَان منفي نه بعد وي، مثال: مَا كَان اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ أَيْ لِأَنْ يُّعَذِّبَهُمْ.

(3) دَ هغه أَو نه بعد به أَنْ مقدر وي چه په معنٰى دَ إِلٰى اَن یا إِلَّا اَن وي، مثال: لَأَلْزَمَنَّكَ أَو تُعْطِيَنِيْ حَقِّيْ أَيْ إِلٰى أَنْ تُعْطِيَنِيْ حَقِّيْ یا إِلَّا أَنْ تعطِيَنِي حَقِّيْ.

(4) دَ واو صرف نه بعد به أَنْ مقدر وي، واؤ صرف هغه ته وائي چه دَ خپل مابعد دَ ماقبل سره دَ مصاحبت فائده ورکړي، واؤ صرف به دَ شپږو ځیزونو په جواب کښ واقع وي.

(1) امر په جواب کښ،مثال: زُرْنِيْ وأُكْرِمَكَ أَيْ وأَنْ أُكْرِمَكَ.

(2) نهي په جواب کښ،مثال: لَا تَعْصِ وَتُعَذِّبَ أَيْ وَأَنْ تُعَذِّبَ.

(3) نفي په جواب کښې، مثال: مَا تَأْتِيْنَا وَتُحَدِّثَ أَيْ وَأَنْ تُحَدِّثَ.
(4) استفهام په جواب کښې، مثال: أَيْنَ بَيْتُكَ وَأَزُوْرَكَ أَيْ وَأَنْ أَزُوْرَكَ.
(5) تمنّي په جواب کښې، مثال: لَيْتَ لِيْ مَالٌ وَأُنْفِقَ مِنْه أَي وَأَنْ أَنْفِقَ مِنْه.
(6) عرض په جواب کښې، مثال: أَلَا تَنْزِلُ بِنَا وَتُصِيْبَ خَيْرًا أَيْ وَأَنْ تُصِيْبَ خَيْرًا.
(5) دَ هغه فاء نه بعد به أَنْ مقدر وي کومه فاء چه دَ دے مذکوره شپږ څيزونو نه بعد وي يعني بعد واقع وي.
فائده: دَ فارسئ دَ نحو مير په حاشيه کښې دي چه دَ ترجّي په جواب کښې فاء راشي نو مابعد به ترينه أَنْ مقدر وي، مثال: لَعَلِّيْ أَبْلُغُ الْأَسْبَابَ أَسْبَابَ السَّمٰوات فَأَطَّلِعَ إِلٰى إِلٰه مُوْسٰى.
(6) لام کَيْ:نه بعد به أَنْ مقدر وي: أَسْلَمْتُ لِأَدْخُلَ الْجَنَّةَ أَيْ لِأَنْ أَدْخُلَ الْجَنَّةَ.
ترکيب: مَا کَانَ اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ: مَا نافيه غير عامله، کَانَ فعل ناقصه لفظ الله اسم جلاله ئې اسم، ليعذّبهم: لام جحد جاره، يعذّب صيغه واحد مذکر غائب فعل مضارع معلوم حالت نصبي په تقدير دَ أَنْ سره هُوَ ضمير ئې فاعل، هُم ضمير منصوب متصل ئې مفعول به، فعل سره دَ خپل فاعل او مفعول به نه په تاويل دَ مصدر سره دا مجرور دَ لام حرف جر لپاره جار سره د مجرور نه دا متعلق شو په قاصدًا اسم فاعل پورے، قاصدًا اسم فاعل هُوَ ضمير ئې فاعل، اسم فاعل سره دَ خپل فاعل نه دا خبر شو دَ کَانَ لپاره، کَانَ سره دَ خپل اسم او خبر نه جمله اسميه خبريه.

## تمرين(22)

دَ مضارع ناصب متعين کړې، ترجمه او ترکيب هم وکړې.

يَسُرُّنِيْ أَنْ تَزُوْرَنَا، لَنْ أَضْرِبَ الْقِطَّ، لَا تَنْهَ عَنْ مُنْكَرٍ وَتَأْتِيَ مِثْلَهُ، اِصْنَعِ الْمَعْرُوْفَ فَتَنَالَ الشُّكْرَ، جِئْتُ كَيْ أَتَعَلَّمَ، لَنْ أَتْرُكَكَ حَتّٰى أَطْمَئِنَّ عَلَيْكَ، إِنَّنِيْ بَاقٍ أَوْ تَذْهَبَ مَعِيَ، لَعَلِّيْ أَبْلُغُ الْأَسْبَابَ أَسْبَابَ السَّمٰوات فَأَطَّلِعَ إِلٰى إِلٰهِ مُوْسٰى، سَأَزُوْرُ مَدِيْنَتَكُمْ إِذَنْ تُقِيْمَ عِنْدَنَا، يَالَيْتَنِيْ كُنْتُ مَعَهُمْ فَأَفُوْزَ فَوْزًا عَظِيمًا، وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُوْمًا مَحْسُوْرًا، أَتَعَلَّمُ كَيْ أَخْدِمَ الْوَطَنَ، سَأَغْلُقُ النَّوَافِذَ إِذَنْ يَفْسُدَ الْهَوَاءُ، وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ، رَكِبْتُ السَّيَّارَةَ لِكَيْ أَخْتَصِرَ الْوَقْتَ، لَنْ يَفُوْزَ الْكَسْلَانُ، عَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضٰى، فَتَحْتُ نَوافِذَ الْحُجْرَةِ كَيْ يَتَجَدَّدَ هَوَاءُهَا، لَا تَأْمُرْ بِالصِّدْقِ وَتَكْذِبَ، مَا تَأْتِيْنِيْ فَأُكْرِمَكَ لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوْتُوْا، وَلَا تَطْغَوْا فِيْهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِيْ.

فائده: علامت أَنْ مصدريه: په داسے کلام کښې واقع وي چه په شک یا طمع یا امید باندے دلالت کوي.

فائده: كه أَنْ دَ عَلِمَ فعل نه بعد واقع شي نو مضارع ته به نصب نه ورکوي، مثال: عَلِمَ أَنْ سَيَكُوْنُ مِنْكُمْ مَرْضٰى. ځکه چه دا "أَنْ" مثقله دے چه مخفف کړے شوے دے.

## دويم قسم حروف جوازم

حروف جازمه پنځه دي چه په دے شعر کښې جمع دي:

إِنْ وَلَمْ لَمَّا لَامِ امر ولائے نهي نيز

ايں پانچ حروف جازم فعل آند هريك بے دغا

مکمل تفصیل ئې دَ فعل په علاماتو کښې ذکر شوے دے.

فائده: جازم په دوه قسمه دے:

(1)چه یو فعل ته جزم ورکوي، مثال: لَمْ يَفْعَلْ.

(2)هغه چه دوه فعلونو ته جزم ورکوي، مثال: اسمائے جازمه، إِنْ تَضْرِبْ أَضْرِبْ، مَتٰى تَصُمْ أَصُمْ.

فائده: إِن همیشه په دوه جملو داخلیږي اولنۍ ورلره شرط او دویمه ورلره جزاء وي، إِنْ تَضْرِبْ أَضْرِبْ.

إِنْ دَ استقبال لپاره راځي، اګر که په فعل ماضي باندے داخل شي، إِنْ ضَرَبْتَ ضَرَبْتُ.

فائده: إِنْ په دوو جملو داخلیږي اولنۍ جمله ئې فعلیه وي او دویمه کله اسمیه وي، کله امریه وي، کله نهیه وي او کله دعائیه وي، په دے څلورو واړو صورتونو کښې په جزاء باندے فاء داخلول ضروري دي.

مثالونه په ترتیب سره: إِنْ تَأْتِنِيْ فَأَنتَ مُكْرَمٌ، إِنْ رَأَيْتَ زَيدًا فَأَكْرِمه، إِنْ أَتَاكَ عمرٌو فَلَا تُهِنْه، إِنْ أَكْرَمْتَنِيْ فَجَزَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا.

## تمرين(23)

دَ فعل مضارع جازم متعین کړئ، ترجمه او ترکیب وکړئ.

إِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّه مِنْ قَبْلُ، كَبُرَ الْغُلَامُ وَلَمَّا يَتَهَذَّبْ، لِتَجْتَنِبْ كَثْرَةَ الْمَذَاحِ، لَا تُشْرِكُوْا بِه شَيْئًا، فَإِنِ انْتَهَوا فَإِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ، لَا تَرْفَعُوْا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ، إِنْ تَعِظْ أَعِظْ، لَمَّا يَرْجِعْ أَبِيْ مِنَ السَّفَرِ، لَمْ يَنَامَا قَبْلَ صَلوٰةِ الْعِشَاءِ، وَإِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا فَأْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِنْ مِّثْلِه، لَمَّا يَصْنَعْنَ الْقَهْوَةَ، إِنْ يَّكْفُرُوا فَإِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ، لَا تَلْمِزُوا أَنْفُسَكُمْ، لِيَجْلِسُوا عَلَى الْكراسِيِّ، لَا يَقْتَرِبُوْا مِنَ الْفَوَاحِشِ، إِنْ

أَكْرَمْتَنَا فَيَرْحَمُكَ اللّٰهُ، أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ، قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُونِ، لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ، لَا تَطْغَوْا فِيْه، لَمَّا تَأْكُلِيْ الطَّعَامَ، التِّلْمِيْذَاتُ الْمُجْتَهِدَاتُ لَمْ يَسْقُطْنَ فِي الْإِمْتِحَانِ، فَإِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ، إِنْ تَعُوْدُوْا نَعُدْ، لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِنْ سَعَتِه، مَشَيْتُ كَثِيْرًا وَلَمْ أَتْعَبْ، إِنْ تَعْمَلُوْا تُوْجَدُوْا، إِنْ يَّشَأْ يُذْهِبْكُمْ.

## باب دوم در عمل افعال

## افعال عامله

مصنف ﷫ اول دَ حروف عامله بحث وکړو او دلته په دویم باب کښې دَ افعال عامله بیان کوي.

## بدانکه هیچ فعل غیر عامل نیست...

په حروف عامله او اسمائے عامله کښې بعض عامل او بعض غیر عامل دي لیکن افعال عامله ټول په ټوله عامله دي او افعال عامله په دوه قسمه دي:

**(1)**معلوم، **(2)**مجهول.

دَ معلوم تعریف: **فعل معلوم** هغه ته وائي چه دَ **فعل** نسبت **فاعل** ته وشي.

مثال: ضَرَبَ زيدٌ او دیته **فعل** معروف هم وائي او مبني للفاعل هم ورته وائي.

دَ مجهول تعریف: هغه ته وائي چه دَ **فعل** نسبت مفعول ته وشي، مثال: ضُرِبَ زيدٌ او دیته **فعل** ما لم يُسمّ فاعلُه وائي.

**فعل** معروف په دوه قسمه دے: **(1)فعل** لازمي، **(2)فعل** متعدي.

**فعل** لازمي تعریف: چه صرف په **فاعل** باندے پوره کیږي او دَ مفعول به

تقاضه نه کوي، مثال: قامَ زيدٌ.

**فعل متعدي:** چه په فاعل باندے نه پوره کيږي بلکه دَ مفعول به تقاضه کوي، مثال: ضَرَبَ زَيْدٌ عمروًا.

**فعل** لازم او متعدي فاعل ته رفع او شپږ څيزونو ته نصب ورکولو کښې متفق دي: **(1)**مفعول مطلق ته قامَ زيدٌ قِيَامًا، **(2)**مفعول فيه ته صُمْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، **(3)**مفعول معه ته جَاء الْبَرْدُ وَالْجُبَّاتِ أَيْ مَعَ الْجُبَّاتِ، **(4)**مفعول له ته ضربتُه تأْدِيْبًا، قُمْ إِحْتِرَامًا لِأَبِيْكَ، **(5)**حال ته جاءِنِيْ زيدٌ رَاكِبًا، **(6)**تميز ته طَابَ زيْدٌ نَفْسًا، البته **فعل** لازم مفعول به ته نصب نه ورکوي ځکه چه تقاضه ئې نه کوي. او **فعل** متعدي ورته نصب ورکوي ځکه چه تقاضه ئې کوي، مثال: ضرب زيدٌ عمروًا.

په دے کښې دَ هر يو تعريف:

## دَ فاعل تعريف

**فاعل** هر هغه اسم ته وائي چه دَ **فعل** يا شبه **فعل** نه بعد واقع وي په دے طريقه سره چه دَ **فعل** او شبه **فعل** نسبت دغه اسم طرف ته شوے وي او دَ **فعل** شبه **فعل** قيام هم دَ دغه اسم سره وي.

دَ **فعل** مثال: ضَرَبَ زيدٌ کښې زيد **فاعل** دے او ضَرَبَ **فعل** دے،

شبه **فعل** مثال: زيدٌ قائمٌ أَبُوْه کښې أبوه **فاعل** دے.

**خلاصه:** په **فاعل** کښې به درے خبرے ضروري وي: **(1)**دَ **فعل** يا شبه **فعل** نه بعد به واقع وي که مخکښې وو، **فاعل** به نه وي، مثال: زيدٌ ضَرَبَ، زيد مبتداء ده، **(2)**دَ **فعل** يا شبه **فعل** نسبت به دغه اسم طرف ته شوے وي که نه وو شوے نو **فاعل** به نه وي، مثال: ضرب زيدٌ عمروًا کښې عمروًا مفعول به دے **فاعل** نه دے، **(3)**دَ **فعل** يا شبه **فعل** قيام به دَ دغه اسم سره وي که

نه وو نو فاعل به نه وي، مثال: ضُرِبَ زيدٌ كښې زيدٌ نائب فاعل دے.

**فائده:** اسم فاعل، اسم مفعول، اسم تفضيل، صفت مشبه، صيغه مبالغه ته شبه فعل وائي.

**فائده:** اسم فاعل او فاعل كښې فرق: **(1)**اسم فاعل په ذات مع الوصف دلالت كوي،مثال: ضارِبٌ او فاعل صرف په ذات دلالت كوي، مثال: زيدٌ، په ضرب زيدٌ كښې **(2)**اسم فاعل هميشه مشتق وي او فاعل كله مشتق او كله جامد وي.

## دَ مفعول مطلق تعريف

مفعول مطلق هغه مصدر ته وائي چه دَ داسے فعل نه بعد واقع شي چه دَ دغه فعل او مصدر معنٰى يو وي،ضربتُ ضربًا، قُمتُ قيامًا.

**خلاصه:** په مفعول مطلق كښې به درے خبرے وي: **(1)**مصدر به وي كه مصدر نه وو نو مفعول مطلق به نه وي،مثال: ضَرَبَ زيدٌ عمروًا كښې عمروًا مفعول به دے مفعول مطلق نه دے.

**(2)**دَ فعل نه بعد به واقع وي كه نه وو نو مفعول مطلق به نه وي، مثال: الضَّرْبُ وَاقِعٌ عَلٰى زيدٍ كښې الضَّرْبُ مبتداء ده.

**(3)**دَ فعل او مصدر معنٰى به يوه وي كه يوه نه وه نو مفعول مطلق به نه وي مثال: ضربتُه تأدِيْبًا كښې تأْدِيْبًا مفعول له دے مفعول مطلق نه دے.

**نوټ:** دَ فعل او مصدر معنٰى يو كيدلو درې صورتونه دي: **(1)**چه لفظ او معنٰى يو وي ضربتُ ضربًا،**(2)** چه معنٰى يوه وي او الفاظ جدا وي قعدتُ جلوسًا، **(3)**چه الفاظ يو وي ليكن بابونه جدا وي أَنْبَتَ اللّٰه نبَاتًا.

**فائده:** دَ مفعول مطلق فوائد درے دي: **(1)**كله دَ تاكيد لپاره راځي، مثال ضربتُ ضربًا.

(2)کله دَ فعل دَ نوعيت بيانولو لپاره راځي، مثال: جلستُ جِلْسَةَ القَارِيْ.
(3)کله دَ عدد فعل دَ بيان لپاره راځي، مثال: جَلستُ جَلْسَةً.

## دَ مفعول فيه تعريف

مفعول فيه هر هغه اسم ته وائي چه دَ فاعل فعل پکښ واقع وي، که چرته ځائے وي نو ظرف مکان ورته وائي: جَلَسْتُ عِنْدَكَ مفعول فيه ظرف مکان دے او که چرته وقت کښ وي نو ظرف زمان ورته وائي، مثال: صُمْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، مفعول فيه زمان دے.

## دَ مفعول معه تعريف

مفعول معه هرهغهٔ اسم ته وائي چه دَ داسے واؤ نه بعد واقع وي چه دَ مَعَ په معنٰى وي، مثال: جَاءَ الْبَرْدُ وَالْجُبَّابِ أَي مَعَ الْجُبَّاتِ.
نوټ: که چرته مع په لفظونو کښ پخپله موجود وي نو بيا به مفعول معه نه وي، مثال: لَا تَجْعَلُوْا معَ اللهِ إِلٰهًا آخَرَ، شَاهَدْتُ الرّجُلَ مَعَ زَمِيْلِه.

## دَ مفعول له تعريف

هر هغه اسم ته وائي چه فعل مذکور دَ دے له وجه نه واقع شي، مثال: قُمْتُ إِكْرَامًا لِّزَيْدٍ کښ إِكْرَامًا مفعول له دے.

## حال

دلته درے خبرے دي:
الأول: دَ حال تعريف: حال هغه لفظ ته وائي چه دَ فاعل يا مفعول يا دَ فاعل او مفعول دواړو حال بيان کړي.

فاعل مثال: جاءَنِي زيدٌ رَاكِبًا، رَاكِبًا حال دے زيدٌ ذوالحال دے.
مفعول مثال: ضربتُ زيدًا مشْدُوْدًا، مشدودًا حال دے زيدًا مفعول ذوالحال دے.
دَ دواړو مثال: لَقِيْتُ زَيْدًا رَاكِبَيْنِ، رَاكِبَيْنِ حال دے، تُ ضمير مرفوع متصل فاعل او زيدًا مفعول به دواړه ذوالحال دے.
الثاني: ذوالحال اكثر معرفه وي او حال هميشه نكره وي، وجه دا ده چه ذوالحال معنًا مسند اليه وي او مسند اليه كښې اصل معرفه وي او حال معنًا مسند وي او په مسند كښې اصل نكره وي، كه چرته ذوالحال نكره وي نو دَ حال په ذوالحال باندے مقدم كول ضروري دي لكه جاءَنِي راكبًا رجُلٌ كښې راكبًا حال دے، كه حال په ذوالحال مقدم نه شي نو په حالت نصبي كښې به ئې دَ موصوف صفت سره مشابهت راشي.
نوټ: التباس خو صرف په حالت نصبي كښې راځي ليكن طرداً للباب ئې په حالت رفعي او جري كښې هم حال په ذوالحال مقدم كړو.
الثالث: حال چه په كومه طريقه سره مفرد واقع كيږي نو په دغه طريقه سره جمله هم واقع كيږي، وجه دا ده چه دَ حال كار وي چه دَ فاعل يا مفعول حالت بيان كي نو څنګه چه دا كار مفرد كوي نو په دغه طريقه سره ئې جمله هم كوي، مثال: رأَيْتُ الْأَمِيرَ وَهُوَ رَاكِبٌ.
فائده: وَحْدَه: لفظ چه چرته وي نو هميشه لپاره به حال جوړيږي او ماقبل به ئې ذوالحال وي، مثال: مَنْ رَأى هِلَالَ رَمَضَانَ وَحْدَه صَامَ.

## دَ تمييز تعريف

هغه اسم ته وائي چه ابهام لري كړي بيا دا په دوه قسمه دے:
(1)چه دَ نسبت نه ابهام لري كړي، مثال: طاب زيدٌ نفسًا دَ زيد او طَابَ په

درمیان کښې ابهام وو نو نفسًا هغه ختم کړو.

**(2)**چه دَ مفرد نه ابهام ختم کړي بیا دَ دے څلور صورتونه دي:

**(1)**چه دَ عدد نه ابهام ختم کړي: عِنْدِي أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا.

**(2)**دَ کیل او پیمانے نه ابهام ختم کړي: عِنْدي قَفِيْزَانِ بُرًّا.

**(3)**دَ وزن نه ابهام لرې کړي: عِنْدِي رِطْلٌ زَيْتًا.

**(4)**د مساحت او فاصله نه ابهام لرې کړي: عِنْدِي شِبْرٌ أَرْضًا. یا مَا فِي السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ سَحَابًا.

## دَ مفعول به تعریف

مفعول به هغه اسم ته وائي چه دَ فاعل فعل پرې واقع شي: مثال: ضرب زیدٌ عمروًا کښې عمروًا مفعول به دے.

فائده:اسم مفعول او مفعول کښې فرق: **(1)**اسم مفعول په ذات مع الوصف باندے دلالت کوي، مثال: مضْرُوْبٌ، او مفعول به صرف په ذات باندے دلالت کوي، مثال: ضرب زیدٌ عمروًا کښې عمروًا. **(2)**اسم مفعول همیشه لپاره مشتق وي او مفعول به کله مشتق او کله به جامد وي.

نوټ: دا څومره منصوبات چه ذکر شو دا مسند او مسند إلیه نه واقع کیږي، ځکه چه دا دَ کلام پوره کیدونه بعد ذکر کیږي او کلام په فعل او فاعل سره پوره کیږي ځکه ویلے کیګي الْمَنْصُوبَاتُ فَضْلَةٌ.

فائده: حال په شپږ قسمه دے: **(1)**مؤکده، **(2)**مُؤسّسه، **(3)**مُترادفه، **(4)**مُتَداخله، **(5)**دائمه، **(6)**منتقله.

دَ هر یو تعریف: **(1)** حال مؤکده: چه په لفظ حال سره نوے خبر معلوم نه شي بلکه هغه معنٰی چه دَ جملے نه فهم کیږي دَ هغې دَ تاکید لپاره راځي.

مثال: لَا تَعْثَ فِي الْأَرْضِ مُفْسِدًا. لَا تَظلِمِ النَاسَ بَاغِيًا په دے مثالونو کښې

تَعْثَ او فساد، ظلم او بغي يو څيز د ے.

(2)حال مؤسسه يا مبينه: هغه ته وائي چه دَ حال نه نوے خبره معلوم شي چه دَ مخکنئ جملے نه مستفاد نه وي، مثال: جاءَ زيدٌ رَاكِبًا، رَأيْتُ بَكرًا بِاكيًا، وَقَفَ الأَسَدُ فِي قَفَصِه غَاضِبًا په د ے مثالونه کښې باكيًا، راكبًا، غَاضبًا نوے خبره ده.

(3)حال مترادفه: کله چه دَ ذوالحال لپاره متعدد حال راشي نو ديته حال مترادفه وائي، جاءنِي زيدٌ راكبًا وباكيًا.

(4)حال متداخله: که دَ ذوالحال نه متعدد حال راشي او دَ دويم حال لپاره په اولني حال کښې ضمير مستتر حال وګرځے نو ديته حال متداخله وائي.

مثال: جاءني زيدٌ راكبًا وباكيًا دلته دَ باكيًا لپاره راكبًا کښې ضمير مستتر ذوالحال وګرځولے شي او لفظ زيد ورلره ذُو الحال ونه ګرځولے شي.

(5)حال منتقله: که حال داسے صفت وي چه جلد ختميږي نو ديته حال منتقله وائي، مثال: جاءني زيدٌ ضَاحِكًا.

(6)حال دائمه:که حال صفت دائمه وي نو ديته حال دائمه وائي، مثال: جاءَ زيدٌ أَبُوكَ عَطُوْفًا.

## تمرين(24)

مفعول به، مفعول له، مفعول فيه، مفعول مطلق، مفعول معه، حال، او دَ تمييز نشاندهي وکړي سره دَ ترجمه او ترکيب.

يَبِيْعُ الْقَصَّابُ اللَّحْمَ، قَرَأَ زَيْدٌ جَالِسًا، وَقَفْتُ أَمَامَ الْمِرْاٰةِ، اِشْتَرَيْتُ عِشْرِيْنَ قَلَمًا، يَشْرَبُ الطِّفْلُ اللَّبَنَ شُرْبًا، سِرْتُ وَالطَّرِيْقَ وَقَفَ الْجُنْدُ إِجْلَالًا لِلْأَمِيْرِ، كَلَّمْتُ زَيْدًا قَاعِدَيْنِ، أَبْصَرَ الرَّجُلُ الْهِلَالَ، تُوْقَدُ الْمَصَابِيْحُ لَيْلًا، مَاتَ سَعِيْدٌ

وَطلُوْعَ الشَّمْسِ، اِمْتَلَأَ الْبَيْتُ رِجَالًا، قُمْ احْتِرَامًا لِأَبِيْكَ، أَكَلَ الذِّئْبُ الْخرُوْفَ، ضَرَبَ الْخَادِمُ الْعَقْرَبَ ضَرْبَةً، وَفَجَّرْنَا الْأَرْض عُيُوْنًا، رَأَيْتُ الطَّالِبَ مَسْرُوْرًا، شَرِبَ الْمَرِيْضُ الدَّوَاءَ صَبَاحًا، كَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا، بَعَثْنَا مِنْهُمْ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا، سَالَ الْوَادِيْ مَاءً، عَاقَبَ الْقَاضِي الْمُجْرِمَ تَأْدِيْبًا لَه، نَامَ الْكَلْبُ خَلْفَ الْبَابِ، وَتَأْكُلُوْنَ التُّرَاثَ أَكْلًا لَمًّا، قُتِلَ حَمْزَةُ شَهِيْدًا، وَقَفَ الْإِمَامُ خَطِيْبًا، وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِيْنَ، كُنْتَ تَسِيْرُ لَيْلًا، وَسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّأَصِيْلًا، وُلِدَ هٰذَا الطِّفْلُ يَوْمَ الْعِيْدِ، بَكَى الْفَرِيْدُ شَوْقًا إِلٰى وَطَنِه، لَمْ اٰتِ مَعَكَ طَلَبًا لِمُكَافَاةٍ، اِصْنَعْ لِوَالِدَيْكَ مَعْرُوْفًا اِرْضَاءً لَهُمَا، اِسْتَبْشَرَ النَّاسُ اِسْتِبْشَارًا، سَمِعْنَا كَلَامَكُمْ كَلَامًا جَيِّدًا، وَجَاهِدْهُمْ جِهَادًا كَبِيْرًا، مَا أَنْتَ وَالسَّبَاحَةَ، أَنَا سَائِرٌ وَّالنِّيْلَ، زِنْ لِيْ كَيْلًا سُكَّرًا، وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا أَشَدُّ حُبًّالِلّٰهِ، أَيُّ الرَّجُلَيْنِ أَقْوٰى بَأْسًا، فِي الْفَصْلِ عِشْرُوْنَ طَالِبًا.

## فصل بدانكه فاعل بر دو قسم است

## فاعل په دوه قسمه دے

فاعل په دوه قسمه دے: **(1)**اسم ظاهر، **(2)**اسم ضمير.

ضمير په دوه قسمه دے: بارز او مستتر، تفصيل ئې مخکښې ذکر شوے دے ليکن دلته يو قانون بيانوي چه کله فاعل اسم ظاهر يا اسم ضمير وي نو فعل به مذکر يا مؤنث ذکر کوي، درے قسمونه ئې دي:

**الأول**: فعل مؤنث راوړل واجب دي په درے صورتونو کښې:

**(1)**چه فاعل اسم ظاهر مؤنث حقيقي وي دَ فعل او فاعل په درميان کښې فاصله نه وي لکه قَامَتْ هِنْدٌ.

(2)چه فاعل اسم ضمير وي او مؤنث حقيقي طرف ته راجع وي، مثال: هِنْدٌ قَامَتْ.

(3)چه فاعل اسم ضمير وي او مؤنث غير حقيقي طرف ته راجع وي، مثال: الشَّمْسُ طَلَعَتْ.

الثاني:فعل مذكر راوړل واجب دي په دوو صورتونو كښې:

(1)چه فاعل اسم ظاهر مفرد مذكر وي،مثال: قَامَ زيدٌ.

(2)چه فاعل اسم ظاهر جمع مذكر سالم وي، مثال: قَامَ الْمُسْلِمُوْنَ.

الثالث: په څلورصورتونو كښې فعل مذكر او مؤنث دواړه راوړل جائز دي.

(1)چه فاعل اسم ظاهر مؤنث حقيقي وي او دَ فعل او فاعل په درميان كښې فاصله وي، قَامَ الْيَوْمَ هِنْدٌ، قَامَتِ الْيَوْمَ هِنْدٌ.

(2)چه فاعل اسم ظاهر مؤنث غير حقيقي وي، مثال: طَلَعَ الشَّمْسُ، طَلَعَتِ الشَّمْسُ.

(3)چه فاعل جمع مكسر وي، مثال: قَامَ الرِّجَالُ، قَامَتِ الرِّجَالُ.

(4)چه فاعل جمع مؤنث سالم وي، مثال: جاءَ الْمُسْلِمَاتُ، جَاءَتِ الْمُسْلِمَاتُ.

مصنفؒ دَ فعل معلوم دَ بيان نه فارغ شو نو دلته فعل مجهول ذكر كوي.

فعل مجهول تعريف: فعل مجهول هغه ته وائي چه دَ فعل نسبت مفعول طرف ته وشي، يا فعل مجهول هغه ته وائي چه په هغه كښې فاعل حذف كړے شي او مفعول به دَ هغه په ځائے قائم كړي شي او دَ فاعل رفع ورلره وركړي. مثال: ضَرَبَ زَيْدٌ عمروًا نه فعل مجهول جوړاوُل ضُرِبَ زَيدٌ او ديته فعل ما لم يُسَمّ فاعله او مبني للمفعول هم وائي.

دَ فعل مجهول عمل: مفعول به ته رفع وركړي او نائب فاعل ئې ځان له جوړ كړي او باقي تمام مفاعيل ته نصب وركوي، لكه ضُرِبَ زَيْدٌ يَوْمَ

الْجُمُعَةِ أَمَامَ الْأَمِيرِ ضَرْبًا شَدِيْدًا فِي دارِهِ تَأْدِيْبًا وَالخَشَبَة، په دي كلام كښې زيدٌ مفعول به نائب فاعل، يومَ مفعول فيه ظرف زمان، أَمامَ الأَمِيْرِ مفعول فيه ظرف مكان، ضَرْبًا مفعول مطلق، تَأْدِيْبًا مفعول له، وَالْخَشَبَةَ مفعول معه.

## تمرين (25)

دَ فاعل قسمونه او دَ فعل مجهول دَ عمل نشاندهي اوكړئ، ترجمه او تركيب اوكړئ؟

قَالَتْ سَلْمٰى، أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلَي الرَّسُوْلِ، إِذْ قَالَتِ امْرَأَةُ عِمْرَانَ، طُهِرَتِ الْكَعْبَةُ مِنَ الْأَصْنَامِ، الْمَرْأَةُ أَقْبَلَتْ، أُمِرْنَا بِالصَّلوٰةِ، صَامَتْ فَاطِمَةُ، سُعْدٰى تَابَتْ، حُرِّمَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ أَكْلَ الرِّبوٰا، الْأَرْضُ ضَاقَتْ، فَازَ حَامِدٌ، قَعَدَ سَاجِدٌ، زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوْءُ عَمَلِه، يُخْفِرُ الْعَامِلُوْنَ، جَاءَ الْمُسْلِمُوْنَ، بُعِثَ مُوْسٰى إِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلاءِه، ضَاقَ الْأَرْضُ، وَقَفَتِ الشَّمْسُ، نَامَ اللَّيْلَ هِنْدٌ، خَدِيْجَةُ ذَهَبَتْ، الشَّمْسُ تَطْلُعُ، حَضَرَ الرِّجَالُ، حَضَرَتِ الرِّجَالُ، يُعْبَدُ الرَّبُ، يُخْتَبَرُ الصّدِيْقُ عِنْدَ الْمُصِيْبَةِ، جَاءَ الْبَنَاتُ، ضَاقَتِ الْأَرْضُ، وَقَفَ الشَّمْسُ، جَاءَتِ الْمُؤْمِنَاتُ، نَامَتِ اللَّيْلَ هِنْدٌ، أُسْتُخْلِفَ أَبُوْبَكْرٍ، الْمُسْلِمُوْنَ يُكْرِمُوْنَ، السَّيَارَةُ وَقَفَتْ.

## فصل بدانكه فعل متعدي بر چهارقسم است

(1) هغه فعل چه متعدي وي يو مفعول ته. ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْروًا.

(2) هغه فعل چه متعدي وي دوه مفعولو ته. او په دي كښې يو ذكر كول او يو حذف كول جائز وي مثال: أَعْطٰى اوهغه افعال چه معني ئې ددي په شان وي مثال: سَلَبْتُ، كَسَوْتُ دلته أَعْطَيْتُ زَيْدًا دِرْهَمًا او أَعْطَيْتُ زَيْدًا دواړه وئيل

جائز دي.

(3) هغه فعل چه متعدي وي دوه مفعولو ته او په دي کښ يو ذکر کول او بل حذف کول جائز نه وي لکه افعالِ قلوب ځکه چي د افعالو قلوبودواړه مفعوله په منزله د يوي کلمي دي.که يو مفعول حذف کړے شي نو لازم به شي د کلمه يو جزء حذف کول او دا جائز نه دي.

## دَ أفعالِ قلوب تعريف

افعال قلوب هغه ته وائي چه په صدور کښ ظاهري اعضاء ته محتاجه نه وي په مقابل کښ ئي افعال علاجي راځي چي ظاهري اعضاء ته محتاج وي مثلاً ضَرَبَ ، قَتَلَ.

## افعال قلوب

نوټ: عَلِمْتُ، رَأَيْتُ، وَجَدْتُ، ظَنَنْتُ، حَسِبْتُ،خَلْتُ، زَعَمْتُ.

په دي کښ عَلِمْتُ، رَأَيْتُ، وَجَدْتُ يقين لپاره راځي.

او ظَنَنْتُ، حَسِبْتُ،خِلْتُ د ګمان لپاره راځي.او زعمت د ګمان او يقين په مينځ کښ مشترک دے.

(4) هغه فعل چه متعدي وي دريو مفعولو ته او هغه دا دي. أعْلَمَ، أرىٰ، أَنْبَأَ، نَبَّاَ، أخْبَرَ، خَبَّرَ، حَدَّثَ مثال: أعْلَمَ اللهُ زَيْدًا عَمْروًا فَاضِلاً.

## بدانکه اين همه مفعولات مفعول به اند

دا څومره مفعولات چه ذکر شو په دي کښ بعض نائب فاعل جوړيږي او بعض نه جوړيږي، کوم چه نائب فاعل نه جوړيږي هغه څلور دي.

(1) د افعال قلوب دويم مفعول.

(2) د أَعْلَمَ أَرىٰ دريم مفعول نائب فاعل نه جوړيږي ځکه چه دا په حقيقت کښ مسند جوړيږي نو که نائب فاعل جوړ شي نو لازم به شي يو ځيز مسند او مسند اليه او دا جائز نه دي.

(3) مفعول له هم نائب فاعل نه واقع کيږي ځکه چه په مفعول له باندي کوم نصب دے دا په سببيت باندي دلالت کوي که رفع پري راشي نو په سببيت باندي دلالت کونکے ځيز به باقي پاتي نه شي.

(4) مفعول معه هم نائب فاعل نه واقع کيږي ځکه که چرته نائب فاعل واقع شي نو يابه د واؤ سره وي يا بغير د واؤ نه.که چرته د واؤ سره وي نو فاصله به راشي په مابين د فعل او نائب فاعل کښ په واؤ سره او که چرته بغير د واؤ نه وي نو بيا خو مفعول معه مفعول معه پاتي نه شو او باقي تمام مفاعيل نائب فاعل واقع کيږي.

نوټ: د أَعْلَمَ، أَرىٰ اولني او دويم مفعول نائب فاعل جوړيږي ليکن اولني ددويم په نسبت نائب فاعل جوړول افضل او بهتر دي.

فائده: حال او تميز هم نائب فاعل نه جوړيږي.

## تمرين (26)

د فعل متعدي اقسام بيان کړی ترجمه او ترکيب وکړی.

رَكِبَ إِبرَاهِيْمُ الحِصَانَ، إِنَّا وَجدنَاهُ صَابِرًا، زَعَمْتُ الشَيْطَانَ شَكُوْراً، أَعْطُوْا الأَجِيْرَ أَجْرَه، سَمِعتُ النَّصِيْحَةَ، نَبَّئَنِيْ بَكْراً عَالِماً، كَسَوْتُهُ جُبَّةً، تُعْطِيْ الْمَدْرَسَةُ الْمُجَدِّيْنَ جَوَائِزَ، يَظُنُّوْنَ أَنَّهُمْ مُلاَقُوْارَبِّهِمْ، لَاتَحْسَبُوْهُ شَرًّ لَّكُمْ، زَعَمْتَنِيْ شَيْخاً، أَعْلَمْتُ زَيْداً عَمروًا فَاضِلاً، يُرِيْهُمُ اللّٰهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ، أَعْطِيَا زَمِيْلَيْكُمَا قَلَمَيْنِ، رَأَيْتُ اللّٰهَ أَكْبَرَ كُلَّ شَيْءٍ، أَنْبِئَا خَالِدًا

سَاجِدًا فَاضِلاً، وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا، وَإِذْ آتَيْنَا مُوْسٰى الْكِتَابَ وَالْفُرْقَانَ، زَعَمْتُ اللّٰهَ غَفُوْرًا، سَيُعْطِيْ حَامِدٌ أُمَّهُ هَدِيَّةً، إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُمْ بَعِيْدًا وَنَرَاهُ قَرِيْبًا، زَعَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا أَنْ لَنْ يُّبْعَثُوْا، يَقْرَءُ سَعِيدُ نِ الْكِتَابَ، أَخْبَرَنِيْ أَنَّكَ مَرِيْضٌ، وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا، خِلْتُ سَاجِدًا نَائِمًا، أَخَالُ أَنَّكَ عَالِمٌ جَيِّدٌ، خِلْتُ رَشِيْدًا قَاعِدًا.

## فصل بدانكه افعال ناقصه هفت ده اند

مخكې بيان د هغه فعل وؤچه هغه په مفرد داخليدو اوس د هغه فعل بيان كوي چه په جمله داخليږي او دا په دوه قسمه دي.افعالِ ناقصه، افعالِ مقاربه.

افعال په دوه قسمه دي. افعالِ ناقصه اوافعالِ تامه.

دَ افعالِ تامه تعريف:چه د خپل فاعل لپاره د خپل مصدر والا معنى ثابت كړي. لكه ضَرَبَ زَيْدٌ كښ ضَرَبَ د زَيْدٌ لپاره د ضاربيت معنى ثابت كړه.

دَ افعالِ تامه وجه تسميه:افعال تامه ته افعال تامه ځكه وائي چه په فاعل باندي تام كيږي دخبر تقاضه نه كوي.

دَ افعالِ ناقصه تعريف: چه د خپل فاعل لپاره دخپل مصدر والاصفت نه علاوه بل صفت ثابت كړي.لكه كَانَ زَيْدٌ قَائِماً كښ كَانَ د زَيْدٌ لپاره قيام ثابت كړۀ چه د كَانَ مصدر نه دے يا بل تعريف افعال ناقصه هغه ته وائي چه دلالت كوي په ثبوت دخبر لپاره د اسم خپل كَانَ زَيْدٌ قَائِماً.

دَ افعالِ ناقصه وجه تسميه:افعال ناقصه ته ناقصه ځكه وائي چه په خپل فاعل نه پوره كيږي بلكه خبر ته ئي هم ضرورت وي.

او دا ټول اوولس (17) دي.

كَانَ، صَارَ، ظَلَّ، بَاتَ، أَصْبَحَ، أَضْحىٰ، أَمْسٰى، عَادَ، آضَ، غَدَا، رَاحَ، مَازَالَ، مَاانْفَكَّ، مَابَرِحَ، مَافَتِئَ، مَادَامَ، لَيْسَ.

دَ افعالِ ناقصه عمل: دا په جمله اسميه داخليږي اولني جزء ته رفع ورکړي ځان له ئي اسم جوړ کړي او دويم جزء ته نصب ورکړي ځان له ئي خبر جوړ کړي مثال: كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا.

دَ افعالِ ناقصه معاني او تفصيل: كَانَ د استعمال په اعتبار سره په څلور قسمه دے ① ناقصه، ② تامه، ③ زائده، ④ بمعني صار.

كان ناقصه: خپل خبر د اسم لپاره په زمانهٔ ماضي کښې د ثابت کولو لپاره راځي که منقطع وي او که دائمي، دَ منقطع مثال: كَانَ زَيْدٌ قَائِماً.

دداٸمي مثال: كَانَ اللّٰهُ عَلِيْماً حَكِيْماً.

د بره اقسامو ترتيب وار مثالونه: ① كَانَ زَيْدٌ قَائِماً، ② كَانَ مَطَرٌ، كَانَ په معنى د نَزَلَ، ③ كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِيْ الْمَهْدِ صَبِيًّاً كَانَ زائده دے.

④ شعر: إِذَا مِتُّ كَانَ النَّاسُ (أي صار) صِنْفَانِ (بمعنىٰ خوشحالى) شَامِتٌ وَآخَرُ مُثْنٍ (ثنا) بِالَّذِيْ كُنْتُ أَصْنَعُ

كَانَ زَيْدٌ غَنِيّاً أَيْ صَارَ

صَارَ: د انتقال لپاره راځي په څلور قسمه دے، په دوه صورتونو کښې تامه او په دوه صورتونو کښې ناقصه.

انتقال من حقيقة إلى حقيقة أخرى: صَارَ الطِّيْنُ خَذْفاً.

انتقال من صفة إلى صفة أخرى: صَارَ الْفَقِيْرُ غَنِيًّا.

دلته ناقصه دے او ما بعد تامه دے.

انتقال من شخص إلى شخص: مثال صَارَ التِّلْمِيْذُ مِنْ أُسْتَاذٍ إِلَى أُسْتَاذٍ آخَرَ.

انتقال من مكان إلى مكان آخر. صَارَ زَيْدٌ مِنَ الْمَدْرَسَةِ إِلَى الْمَسْجِدِ.

ظَلَّ: کله د صَارَ په معني وي او کله ئي معني وي ټوله ورځ. مثال: ظَلَّ زَيْدٌ

قَائِماً.

بَاتَ: کله د صَارَ په معنی وي.او کله د ټوله شپه په معنی مثال: بَاتَ زَيْدٌ قَائِماً.

أَصْبَحَ: کله د صَارَ په معنی وي او کله د سحر په وخت مثال: أَصْبَحَ زَيْدٌ فَقِيْراً.

أَضْحيٰ: کله د صَارَ په معنی وي او کله د چاشت د وخت مثال: أَضْحيٰ زَيْدٌ أَمِيْراً.

أَمْسيٰ: کله د صَارَ په معنی وي او کله د ماښام په معنی وي مثال: أَمْسيٰ زَيْدٌ مُصَلِّياً.

عَادَ، آضَ،غَدَا، رَاحَ: چه کله دا ناقصه وي نو دصَارَ په معنی وي او چه کله تامه وي نوعَادَ او آضَ د رَجَعَ په معنی وي غَدَا دسحر په معنی رَاحَ د ماښام په معنی.

مَازَالَ، مَاانْفَكَّ، مَابَرِحَ، مَافَتِئَ:که دا څلور واړه بغیر د ما نافیه نه وي نو د زائل کیدلو په معنی وي او که د مانافیه سره وي نو په معنی د اثبات سره راځي

قاعده: نفي چه په نفي داخل شي نو د اثبات فائده کوي.

مَادَامَ: کښې ما مصدریه ظرفیه ده دا دخبر ثابت کولو د مدت پوري د یو کار د وخت بیانولو لپاره راځي لکه اِجْلِسْ مَادَامَ زَيْدٌ جَالِساً.

مَادَامَ سره د خپل اسم او خبر نه د ماقبل عامل لپاره ظرف وي.(تسهيل النحو).

لَيْسَ: داد حال د نفي دپاره راځي لَيْسَ زَيْدٌ قَائِماً.

نوټ: ماضي نه سوا ترینه بل فعل نه راځي او لَيْسَ په اصل کښې لَيِسَ بروزن سَمِعَ وؤ نو د تخفیف لپاره ئي یاءساکنه کړه.

## فائده مهمه

سوال: دافعال ناقصۀ خبر په افعال ناقصه باندي مقدم کول جائز دي او که نه دي جائز، دري قسمونه ئي دي:

(1):یولس افعال داسي دي چه د هغوئي خبر په افعال ناقصۀ باندي مقدم

كول جائز دي د كَانَ نه تر غَدَا پورې وجه ئې داده چه دا افعال دي اؤ دافعالو عمل اصل دے اؤ قوي دے نو كه مقدم او كه مؤخر وي په هر صورت كښې عمل كوي.

**(2)**: هغه افعال چه په اول كښې ئې مَا راغلي وي كه مصدريه وي اؤ كه نافيه وي نو ددوي خبر ددوي په افعالو باندې مقدم كول جائز نه دي.

قاعده:چه د نفي نه روستو كوم معمول وي نو هغه په نفي باندې مقدم كول جائز نه وي.

## فِيْ لَيْسَ خلاف

**(3)**: بصريان حضرات فرمائي چه دلَيْسَ عمل د نفي د وجه نه ندے بلكه د فعليت د وجه نه دے نو څنګه چه په نورو كښې تقديم جائز دے دلته هم جائز دے.

امام سيبويه ﷫ وائي چه تقديم ئې جائز نه دے ځكه چه ددۀ خبر هم د نفي ماتحت دے، ځكه چه "ما" مصدريه يا"ما" نافيه صدارت دَ كلام غواړي، او قاعده داده چه د نفي نه ما بعد په نفي باندې مقدم كول جائز نه دي، مثال: قائمًا مَا زَال وئيل جائز نه دي.

## تمرين (27)

په جملو كښې د افعال ناقصۀ داسم او دخبر نشاندهي وكړے.

كَانَ الْبَيْتُ نَظِيْفًا، رَاحَ زَيْدٌ كَاتِبًا، صَارَ الْثَّوْبُ قَصِيْرًا، لَيْسَ الْخَادِمُ قَوِيًّا، أَمْسىٰ الْطَّلَبَةُ مُشْتَغِلِيْنَ بِدُرُوْسِهِمْ، مَاانْفَكَّ الْقُضَاةُ عَادِلِيْنَ، مَابَرِحَ السَّفَرُ مُفِيْدًا، فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَاناً، لَنْ نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِيْنَ، وَأَوْصَانِيْ بِالصَّلاَةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا، آضَ الْصَّبِيُّ بَالِغًا، لَيْسَ رَشِيْدٌ عَالِمًا، فَلَنْ أَبْرَحَ الْأَرْضَ

حَتّٰى يَأْذَنَ لِيْ أَبِيْ، بِتْنَا مَسْرُوْرِيْنَ، كَانَ اللهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا، كَانَ النَّاسُ يَئِدُوْنَ بَنَاتَهُمْ أَيَّامَ الْجَاهِلِيَّةِ، لَاتَزَالُ الْأُمَّهَاتُ رَفِيْقَاتٍ، إِنْتَهَي الْاِمْتِحَانُ وَمَازَالَتِ النَّتِيْجَةُ مَجْهُوْلَةً، مَا فَتِئَ أَخُوْنَا صَابِرًا، تُكْرَمُ مَادَامَ خُلْقُكَ كَرِيْمًا، ظَلَّ زَيْدٌ كَاذِباً، أَصْبَحَ الْجَوُّ مُعْتَدِلًا، أَصْبَحَ الْحِصَانُ جَائِعاً، بَاتَ الْمَرِيْضُ جَائِعاً، مَازَالَ الْحَرُّ شَدِيْداً مُنْذُ شَهْرٍ، لَاتَقْرَءُمَادَامَ النُّورُ ضَئِيْلاً، وَلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ، إِنَّ مِنْ اَفْضَلِهِمْ كَانَ زَيْداً، أَضْحٰى مَحْمُوْدٌ حَاكِماً، أَمْسَيْتُ مُتْعِباً، مَا بَرِحَ النَّاسُ يَثِقُوْنَ بِاالتَّاجِرِ الْأَمِيْنِ، كَانَ زَيْدٌ.

## افعال مقاربه چهار است

دَ افعال مقاربه تعريف: چه د خپل فاعل سره د فعل قربت ثابت کړي.

دلته دري خبري دي.

(1)اولني خبره: افعال مقاربه تفصيل:افعال مقاربه ټول اوؤه دي چه څلور پکښې مشهور او دري پکښې غير مشهور دي.

څلور مشهور: عَسٰى، كَادَ، كَرَبَ، اَوْشَكَ.

غير مشهور: أَخَذَ، طَفِقَ، جَعَلَ: عَسٰى اميد لپاره راځي كَادَاو كَرَبَ يقين لپاره راځي باقي څلور د شروع لپاره راځي.

(2)دويمه خبره:افعال مقاربه عمل: دا هم د افعال ناقصۀ په شان په جمله اسميه داخليږي اولني جزء ته رفع ورکړي ځانله ئې اسم جوړ کړي او دويم جزء ته نصب ورکړي ځانله ئي خبر جوړ کړي، مثال: عَسىٰ زَيْدٌ أَنْ يَّخْرُجَ.

فرق: د افعال ناقصۀ خبر مضارع او غير مضارع دواړه راځي ليکن د افعال مقاربه خبر صرف فعل مضارع راځي ليکن کله د أَنْ سره وي او کله بغير د أَنْ نه عَسٰي زَيْدٌ أَنْ يَّخْرُجَ او عَسٰي زَيْدٌ يَّخْرُجُ.

(3)دريمه خبره: عَسٰي كله تامه وي عَسٰيٍ أَنْ يَّخْرُجَ زَيْدٌ او كله ناقصه وي عَسٰي زَيْدٌ أَنْ يَّخْرُجَ.

فائده:داَوْشَكَ او كَادَ فعل مضارع هم استعماليږي او د يُوْشِكُ اسم فاعل هم استعماليږي يَكَادُ زَيْتُهَا، يُوشِكُ أَنْ يَّاْتِيَنِيْ رَسُوْلَ رَبِّيْ.

أَخَذَ، طَفِقَ، جَعَلَ داهم په فعل مضارع باندي داخليږي ليكن ددۀ په خبر اَنْ نه راځي.

اولني مثال:طَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَّرَقِ الْجَنَّةِ، جَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ يَمْسَحُ رَأْسَهُ، أَخَذْتُ اَكْتُبُ.

## تمرين (28)

افعال مقاربه اسم او خبر متعين كړے ترجمه او تركيب وكړے.

يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيْئُ، عَسىٰ رَبُّكُمْ أَنْ يَّرْحَمَكُمْ، وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ، اَوْشَكَتِ الْحَرْبُ أَنْ تَقَعَ مَعَ الْأَعْدَاءِ، كَادَ قَلْبِيْ أَنْ يَّطِيْرَ، اِنْتَهَتِ الْجَلْسَةُ وَجَعَلَ النَّاسُ يَنْتَشِرُوْنَ، أَوْشَكَ النَّاسُ أَنْ يَّمُوْتُوْاجُوْعًا، عَسىٰ الضَّيْفُ أَنْ يَّخْرُجَ، وَلَا يَكَادُ بَكْرٌ أَنْ يَّقُوْمَ، وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ، طَفِقَ التَّلَامِيْذُ يَتَنَافَسُوْنَ فِيْ الْخِطَابَةِ، عَسَتِ الْهِنْدَاتُ أَنْ يَّقُمْنَ، عَسيٰ اللّٰهُ أَنْ يَّغْفِرَلِيْ، عَسىٰ أَنْ يَّهْدِيَنِيْ رَبِّيْ، يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ، كَادَ اللِّصُ يَهْرَبُ، أَوْشَكَ النَّهَارُ أَنْ يَّنْتَهِيَ، كَرَبَ زَيْدٌ أَنْ يَّخْرُجَ.

## فصل بدانكه افعال مدح وذم چهار است

دَ افعال مدح تعريف:چه په دي سره د چا تعريف بيان كړے شي لكه: نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ.

دَ افعال ذم تعريف: چه په دي سره د چا ذم بيان کړے شي.لکه: بِئْسَ الرَّجُلُ زَيْدٌ.

نوټ:چه د چا تعريف بيان کړے شي هغه ته مخصوص بالمدح او دچا چه ذم بيان کړے شي هغه ته مخصوص بالذم وائي او مخصوص بالمدح او بالذم ددي افعالو د فاعل نه روستو وي. مثالونه بره دي.

## دَ افعال مدح او ذم تفصيل

افعال مدح دوه دي: نِعْمَ او حَبَّذَا او افعال ذم هم دوه دي: بِئْسَ او سَاءَ، په دې څلورو کښې دَ حَبَّذَا نه علاوه د باقي دريو د عمل لپاره شرط دادے چه د دريو شرطونو نه به يکښې يو شرط ضرور وي.

① يا به ئي فاعل معرف باللام وي لکه: نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ.

② يا به ئي فاعل معرف باللام ته مضاف وي لکه: نِعْمَ صَاحِبُ الْقَوْمِ زَيْدٌ.

③ يا به ئي فاعل داسي ضمير وي چه تميز به ئي په نکره منصوبه سره شوے وي: "نِعْمَ رَجُلاً زَيْدٌ" دلته په نِعْمَ کښې هُوَ ضمير مستتر دے او د حَبَّذَا فاعل هميشه لپاره ذَا وي، او حَبَّ فعل وي.

ترکيب:① نِعْمَ الْرَّجُلُ زَيْدٌ، نِعْمَ الْرَّجُلُ فعل فاعل ملکر خبر مقدم زَيْدٌ مبتداء مؤخر، مبتداء سره دَ خبر نه دا جمله اسميه انشائيه.

② نِعْمَ الْرَّجُلُ فعل فاعل ملکر جمله فعليه انشائيه او زَيْدٌ خبر د مبتداء محذوف لپاره چه هُوَ دے، جمله خبريه.

③ نِعْمَ فعل مدح الرَّجُلُ مبين زَيْدٌعطف بيان مبين سره عطف بيان نه فاعل د نِعْمَ لپاره فعل فاعل ملکر جمله فعليه انشائيه.

# افعال تعجب

تعجب په لغت کښې حيرانتيا ته وائي.
تعجب په اصطلاح کښې هغه ته وائي چه ددې په ذريعه سره د تعجب اظهار وکړے شي.
دافعال تعجب دوه صيغې دي دا دوه صيغې قياسي دي مَا أفعله وأفعل به او يوه صيغه سماعي هم ده فَعُلَ په وزن، مثال: ضَرُبَ، دَ تعجب لپاره په عربي ژبه کښې ډير الفاظ استعماليږي، مثال: يطور، الله أكبر، سُبْحَانَ اللهِ مَعَاذَ اللهِ مَاشَاءَ الله دفعل تعجب لپاره شرط دادے چه د ثلاثي مجرد دهغه ابواب نه نوي چه په هغه کښې د رنګ او عيب معني وي.
ضابطه: که چرته ددې بابونو نه د تعجب والا معني مقصود وي نو صورت به ئي دا وي چه اَشَدُّ، اَكْثَرُ، اَقْوىٰ ، اَحْسَنُ يا اَ قْبَحُ.
يا دي په شان به اسم تفضيل په ابتداءکښې راوړي او روستا به تري د دغه باب مصدر بطور تميز راوړي.نو د تعجب معنې به فائده کړي، لکه: مَا اَشَدَّ حُمْرًا مَا اَفْعَلَهُ کښې چه کمه لفظ مَا ده ددې متعلق دري قولونه دي.
د امام فراءؒ د امام سيبويهؒ د امام اخفشؒ.
امام فراءؒ په نزد مَا استفهاميه په معني دأَيُّ شَيءٍ باندې ده اَيُّ مضاف شَيءٍ مضاف اليه. مضاف سره دَ مضاف اليه نه مبتداء، اَحْسَنَ زَيْدًا: اَحْسَنَ صيغه واحد مذكر غائب فعل ماضي هُوَ ضميرمستتر ئي فاعل زَيْدًا مفعول به فعل سره د خپل فاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه داخبر شو لپاره د مبتداء: مبتداء سره دَ خبر نه جمله اسميه انشائيه استفهاميه.
امام سيبويهؒ په نزد ما نکره موصوفه په معني د شَيءٌ عَظِيْمٌ سره شَيءٌ موصوف او عَظِيْمٌ ئي صفت موصوف سره دصفت نه مبتداء او باقي ترکيب د اَحْسَنَ زَيْدًا په شان دے.

امام اخفشؒ په نزد ما موصوله په معني د اَلَّذِيْ اسم موصول او اَحْسَنَ زَيْدًا ورله صله. موصول سره د صله نه مبتداء او شَيءٌ عَظِيْمٌ محذوف ورله خبر مبتداء سره د خبر نه جمله اسميه خبريه.

## تمرين (29)

افعال مدح او افعال ذم او فعل تعجب تلاش کړي ترجمه او ترکيب هم وکړي.

سَاءَ مَا يَحْكُمُوْنَ، مَا اَحْلٰى كَلاَمَهُ، حَبَّذَا السَّاجِدَانِ، نِعْمَ الْاِدَامُ الْخَلُّ، سَاءَ الْفَصْلُ الشِّتَاءُ، قُتِلَ الْاِنْسَانُ مَا اَكْفَرَهُ، بِئْسَ الرِّجَالُ الزَّيْدُوْنَ، فَمَا اَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ، نِعْمَتِ الْمَرْأَتَانِ الْهِنْدَانِ، بِئْسَ الْمَصِيْرُ، حَبَّذَا الْمُسْلِمَاتُ، أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ، مَا اَجْمَلَ الرَّبِيْعُ، نِعْمَ الرَّجُلُ بَكْرٌ، بِئْسَ الْمِهَادُ جَهَنَّمُ، نِعْمَ رَجُلًا سَاجِدٌ، بِئْسَ مَثْوَى الظَّالِمِيْنَ، نِعْمَ الْعَبْدُ اَيُّوْبَ، مَا اَحْسَنَ وَجْهَهُ، سَاءَ الْغُلَامُ غُلَامٌ فَارٌ، سَاءَ الرَّجُلُ تَارِكُ الزَّكَاةِ.

## باب سوم در عمل اسمائے عامله

ربط: مخکښې ئي افعال عامله او حروف عامله بيان کړه.دلته اوس اسمائے عامله بيانوي او دا ټول يولس دي.

اسمائے شرطيه ټول نهه دي. چه په دي شعر کښې جمع دي.

شعر:

مَنْ وَمَا مَهْمَا وَأَيٌّ حَيْثُمَا إِذْمَا مَتٰي أَيْنَمَا أَنّٰي نه اسم جازمند افعال را

اسمائے شرطيه: هغه ته وائي چه په معني د اِنْ سره وي څنګه چه اِنْ په دوه جملو دا خليږي اولني جمله ورلره شرط او دويمه ورلره جزاء وي همدا

رنګه دا اسماء هم په دوه جملو داخلیږي اولني ته شرط او دویمه ته جزاء وائي.

نوټ: څنګه چه اِنْ راځي لپاره د تعلیق یعني جزاء معلقه کوي په شرط پوري همد ارنګه دا اسماء هم د تعلیق لپاره راځي مثال:مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ.

داسمائے شرطیه عمل: فعل مضارع ته جزم ورکوي مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ.

داسمائے شرطیه تعداد :دا صرف نهه دي.

مَنْ، مَا، مَهْمَا، حَیْثُمَا، إِذْمَا، مَتٰی، اَیْنَ، أَنّٰی، أَيُّ په دي کښې مَنْ، مَا، أَيُّ، کله مبتداء وي مَنْ یَأْ تِیْنِيْ فَهُوَ مُکْرَمٌ، أَيُّ شَيءٍ تَأْکُلُ آکُلُ، أَیُّهُمْ فِيْ الْدَّارِ، مَاتَشْتَرِهْ اَشْتَرِهْ.

او کله به دَ مفعول به له وجه نه محلا منصوب وي مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ، مَا تَشْتَرِ اَشْتَرِ که وروسته تري فعل وي او عمل ئي ضمیر کښې کړے وي نو بیا خو به مَنْ او مَا مرفوع وي د ابتدائیت په وجه مَنْ ضَرَبْتَهُ ضَرَبْتُهُ . او کله به د حرف جر له وجه نه محلا مجرور وي، بِمَنْ تَمُرُّ اَمُرُّ، بِمَا تَمُرُّ اَمُرُّ، بِأَیِّهِمْ مَرَرْتُ، او کله به د مضاف إلیه د وجه نه مجرور وي غُلَامُ مَنْ ضَرَبْتَ ضَرَبْتُ.

ده دینه علاوه باقي شپږ اَیْنَ، مَتٰي، اَنّٰي، إِذْمَا، حَیْثُمَا، مَهْمَا.

کله به د مفعول فیه دوجه نه محلا منصوب وي اَیْنَ تَجْلِسْ اَجْلِسْ، مَتٰي تَصُمْ أَصُمْ ، اَنّٰی تَکْتُبْ أَکْتُبْ، إِذْمَا تُسَافِرْ أُسَافِرْ، حَیْثُمَا تَقْصُدْ أقْصُدْ، مَهْمَا تَقْعُدْ أَقْعُدْ

او کله به محلا مجرور وي دحرف جر له وجه نه مثال: مِنْ أَیْنَ تَقْرَأْ أقْرَأْ.

## اسمائے افعال

دویم قسم:هغه اسمائے افعال چه په معني د فعل ماضي وي هَیْهَاتَ بمعني بَعُدَ، شَتَّانَ بمعني اِفْتَرَقَ سَرْعَانَ بمعني سَرُعَ.

د اسمائے افعالو عمل: داخپل مابعد ته رفع ورکوي بنا بر فاعلیت هَیْهَاتَ یَوْمُ الْعِیْدِ أَيْ بَعُدَ یَوْمُ الْعِیْدِ.

دريم قسم: هغه اسمائے افعال چه په معني د امر حاضر وي، رُوَيْدَ بمعني اَمْهِل، بَلْهَ بمعني دَعْ.

دَ اسمائے افعالو عمل: دا خپل ما بعد اسم ته نصب ورکوي بنا برمفعوليت

مثال: رُوَيْدَ زَيْدًا أَيْ اَمْهِلْ زَيْدًا.

نور مکمل تفصيل په اسم غير متمکن کښې تير شوے دے.

## تمرين (30)

د اسمائے شرطيه عمل او شرط او جزاء متعين کړے او دَ اسمائے افعالو اقسام واضح کړے ترجمه او ترکيب وکړے.

مَنْ يَّجْتَنِبْ أَذَى النَّاسِ يَنْجُ مِنْ أَذَاهُمْ، أَيْنَمَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ، أَنّٰى تَجْلِسُوْا تُكْرِمُوْا، مَهْمَا تَزْرَعْ تَحْصَدْ، اَيَّامَا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَاءُ الْحُسْنٰى، وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ، هَيْهَاتَ يَوْمُ الْجُمْعَةِ، أَيَّ بُسْتَانٍ تَدْخُلْ تَبْتَهِجْ، مَنْ يَفْعَلْ ذَالِكَ يَلْقَ أَثَامَا، دُوْنَكَ بَكْرًا، عَلَيْكَ قُرْأَنًا، هَا اِسْلاَمًا، مَهْمَا تُنْفِقْ فِي الْخَيْرِ يُخْلِفْهُ اللّٰهُ، مَا تَشْتَرِ اَشْتَرِ، مَنْ يُّكْرِمْنِيْ أُكْرِمْهُ، عَلَيْكَهُ، رُوَيْدَهُ، مَا تُنْفِقْ فِيْ الْخَيْرِ تُجْزَ بِهِ، أَيْنَمَا تَذْهَبْ أَذْهَبْ، حَيْثُمَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ، مَتٰى يُسَافِرْ أَبِيْ اُسَافِرْ مَعَهُ، شَتَّانَ بَيْنَ مَحْمُوْدٍ وَمُحَمَّدٍ، إِذْمَا تَفْعَلْ شَرًّا تَنْدَمْ، مَنْ يَّتْعَبْ فِيْ صِغْرِهِ يَتَمَتَّعْ فِيْ كِبْرِهِ، مَا تُضَيِّعْ مِنْ وَّقْتِكَ تَنْدَمْ عَلَيْهِ، مَتٰى تَصُمْ أَصُمْ، أَيُّهُمْ يَهْدِيْنِيْ أَهْدِهِمْ، مَتٰى تَقُمْ أَقُمْ، أَيْنَ تَجْلِسْ اَجْلِسْ، مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ أَطَاعَ اللّٰهَ، أَنّٰى تَطُفْ أَطُفْ، مَنْ يَّعْمَلْ سُوْءً يُجْزَبِهِ، شَتَّانَ خَالِدٌ وَّسَاجِدٌ، حَيْثُمَا يَنْزِلْ مَطَرٌ يَنْمُ الزَّرْعُ.

# څلورم قسم اسم فاعل

په اسم فاعل کښې دري خبري دي.

(1) اولني خبره: دَ اسم فاعل تعریف: اسم فاعل هغه اسم ته وائي چه د مضارع معلوم نه جوړ شوي وي او دلالت وکړي په داسي ذات چه د هغه سره د فعل قیام عارضي وي یَضْرِبُ نه ضَارِبٌ.

(2) دویمه خبره: داسم فاعل عمل: دا به د فعل معلوم په شانته عمل کوي که چرته فعل ئي لازم وو نو صرف فاعل ته به رفع ورکوي او د مفعول به تقاضا به نه کوي او که فعل ئي متعدي وي نو فاعل ته به رفع او مفعول به ته به نصب ورکوي او که فعل ئي متعدي بیک مفعول وي نو دا به هم متعدي بیک مفعول وي او که فعل ئي متعدي بدو مفعول وي نو دا به هم متعدي بدو مفعول وي او که فعل ئي متعدي به سه مفعول وي نو دا به هم متعدي به سه مفعول وي.

(3)دریمه خبره: د اسم فاعل عمل لپاره دوه شرطونه دي.

(1)اولني شرط:اسم فاعل کښې به دحال یا استقبال معني وي د ماضي معني به په کښې نه وي که وه نو عمل به نه کوي او دا شرط ئي ځکه ولګولو چه د اسم فاعل دمضارع سره مشابهت کامل شي ځکه چه په مضارع کښې د حال او استقبال معني وي نو چه په زمانه کښې ورسره موافق شي.

(2)دویم شرط: دویم شرط دادے چي اسم فاعل به په شپږو څیزونو کښې په یو څیز باندي اعتماد کړے وي او په دي اعتماد سره پکښې قوت راځي او هغه شپږ څیزونه دادي.

(1) مبتداء باندي به ئي اعتماد کړے وي، د فعل لازمي مثال: زَيْدٌ قَائِمٌ أَبُوْهُ کښې قَائِمٌ په زید باندي اعتماد کړے دي. د فعل متعدي مثال:زَيْدٌ ضَارِبٌ أَبُوْهُ عَمْرًوا کښې ضَارِبٌ په زَيْدٌ باندي اعتماد کړےدے.

(2) يا به ئي تكيه لګولي وي په موصوف باندي لکه مَرَرْتُ بِرَجُلٍ ضَارِبٍ أَبُوْهُ بَكْرًا كښې ضَارِبٌ په رَجُلٌ موصوف باندي تكيه لګولي ده.

(3) په موصول به ئي تكيه لګولي وي جَاءَ نِي الْقَائِمُ أَبُوْهُ. په اَلْقَائِمُ كښې الف لام اسم موصول دے.

(4) په ذوالحال به ئي تكيه لګولي وي جَاءَ نِيْ زَيْدٌ رَاكِباً غُلَامُهُ فَرَساً.

(5) په همزه استفهام به ئي تكيه لګولي وي لکه اَضَارِبُ زَيْدٌ بَكْرًا.

(6) په حرف نفي به ئي تكيه لګولي وي مَا قَائِمٌ زَيْدٌ.

ددويم شرط وجه: داده چه د اسم فاعل عمل ضعيف دے ځکه چه دا عمل كوي د مشابهت د وجه نه د فعل مضارع سره نو دويم شرط ئي ورسره ولګولو.

نوټ: د تكيه او اعتماد نه مراد دادے چه تركيبي تعلق به ئي ورسره وي چه دا اسم فاعل به خبر يا صفت يا حال جوړيږي.

فائده: كه په اسم فاعل باندي الف لام موصولي داخل وو نو په هر وخت كښې به عامل وي څه شرط به ورلره نه وي. (زاد الفقير)

## پنځم قسم: اسم مفعول

اسم مفعول هغه اسم ته وائي چه د مضارع مجهول نه جوړ شوے وي او دلالت وكړي په داسي ذات باندي چه په هغه باندي د فاعل فعل واقع شوے وي مَضْرُوْبٌ.

داسم مفعول عمل: داده فعل مجهول په شانته عمل كوي نائب فاعل ته رفع وركوي او باقي تمام مفاعيل ته نصب وركوي كله به متعدي بيك مفعول وي زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ غُلَامُهُ كله به متعدي بدو مفعول وي عَمْرٌو مُعْطيً غُلَامُهُ دِرْهَماً كله به متعدي به سه مفعول وي خَالِدٌ مُخْبَرٌ نِ ابْنُهُ عَمروًا فَاضِلاً.

داسم مفعول د عمل دپاره هغه شرائط دي، کوم چه داسم فاعل لپاره دي مثالونه په ترتیب سره:

(1)زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ غُلَامُهُ (2)جَاءَ زَيْدٌ مَضْرُوْبًا غُلَامُهُ (3)هٰذَا رَجُلٌ مَضْرُوْبٌ غُلَامُهُ (4)جَاءَ الْمَضْرُوْبُ غُلَامُهُ (5)اَمَضْرُوْبٌ أَبُوْهُ (6) مَا مَضْرُوْبٌ غُلَامُهُ.

## شپږم قسم: صفت مشبه

دصفت مشبه تعریف: صفت مشبه هغه ته وائي چه د فعل لازمي نه جوړه شوي وي او دلالت وکړي په داسي ذات باندي چه د هغه سره د معني مصدري تعلق همیشه دپاره وي. لکه حَسَنٌ، حَسِيْنٌ.

دصفت مشبه عمل:دا همیشه لپاره د فعل لازمي نه راځي نو صرف فاعل ته رفع ورکوي د مفعول به تقاضا نه کوي زَيْدٌ حَسَنٌ غُلَامُهُ، حَسَنٌ غُلَامُهُ ته رفع ورکړي ده.

دصفت مشبه د عمل له پاره شرط: دادے چه په مذکوره شپږ ځیزو نو کښ د اسم موصول نه علاوه به ئي په باقي پنځو ځیزونو اعتماد کړے وي اسم موصول ئي ترینه ځکه ویستو چه په صفت مشبه باندي الف لام موصولي نه داخلیږي او په دي کښ به د زمانۀ حال او استقبال شرط هم نه وي ځکه چه زمانه حال یا استقبال حدوث ته مستلزم وي اوپه صفت مشبه کښ دوام او ثبوت وي.

دصفت مشبه وجه تسمیه:صفت مشبه ورته ځکه وائي چه داسم فاعل سره مشابه دے ځکه چه صفت مشبه داسم فاعل په شانته عمل کوي او داسم فاعل په شانته تري نه واحد تثنیه جمع تمام صیغي راځي نو ددي مشابهت له وجه ورته صفت مشبه وائي لیکن په صفت مشبه او اسم فاعل کښ دري فرقونه دي.

①مِنْ جِهَةِ اللَّفْظِ، ②مِنْ جِهَةِ الْمَعْنَي، ③مِنْ جِهَةِ الْعَمَلِ

①مِنْ جِهَةِ اللَّفْظِ: دا دے چه اسم فاعل د فاعل په وزن راځي او صفت مشبه ددې وزن نه علاوه راځي او صفت مشبه صرف د ثلاثي لازم نه راځي.
او اسم فاعل د ثلاثي او غير ثلاثي او لازمي او غير لازمي دواړو نه راځي.

②مِنْ جِهَةِ الْمَعْنَي: دا دے چه په اسم فاعل کښې به ددرې زمانو نه يوه زمانه وي او په صفت مشبه کښې صرف ثبوت او دوام وي قطع نظر د زمانه حدوث نه.

③مِنْ جِهَةِ الْعَمَلِ: په اسم فاعل باندې د هغه معمول مقدم کيدے شي او په صفت مشبه باندې نه شي مقدم کيدے.

## تمرين (31)

په اسمائے عامله کښې داسم فاعل، مفعول، صفت مشبه، په عمل کښې فکر وکړے.

هٰذَا الرَّجُلُ الضَّارِبُ زَيْدًا غَدًا، مَرَرْتُ بِرَجُلٍ ضَارِبٍ زَيْدًا، زَيْدٌ حَسَنٌ وَجْهُهُ، أَبُوْكَ مُعَطِيٌّ رَأْسُهُ، زَيْدٌ مَا مَضْرُوْبٌ غُلَامُهُ، جَاءَنِيْ زَيْدٌ حَسَنًا كَلَامُهُ، زَيْنَبُ مَا حَسُنَ وَجْهُهَا، أَشَرِيْفَانِ بَكْرَانِ، مَا شَرِيْفٌ عَمْرٌو، رَأَيْتُ رَجُلاً حَسَنًا فُوْهُ، اَلْمَضْرُوْبُ اِبْنُهُ خَالِدٌ، جَاءَنِيْ زَيْدٌ مَضْرُوْبًا غُلَامُهُ، بَكْرٌ مُبَشَّرٌ أَخُوْهُ، مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مَضْرُوْبٌ غُلَامُهُ، رَأَيْتُ رَجُلًا حَامِدًا بَكْرًا، زَيْدٌ قَاصِدٌ أَبُوْهُ بَيْتَ اللهِ، جَاءَنِيْ خَالِدٌ مُكْرِمًا أُمَّهُ، أَغَاسِلٌ مَحْمُوْدٌ ثَوْبَهُ، أَمُجْتَهِدٌ زَيْدٌ فِيْ دَرْسِهِ، مَا خَائِفٌ بَكْرٌ، مَا رَاضٍ عَمْرٌو.

# اووم قسم :اسم تفضيل

داسم تفضيل تعريف:هغه اسم ته وائي چه مشتق وي دفعل مضارع نه او دلالت وکړي په داسي ذات باندي چه په هغه کښ معنيٍ مصدري زياته وي په نسبت د نورو سره زَيْدٌ أَضْرَبُ مِنْ عَمْرٍو.

دَ اسم تفضيل عمل: داسم تفضيل عمل دادے چه صرف فاعل ته رفع ورکوي او فاعل ئي اکثر ضمير مستتر وي او کله کله اسم ظاهر هم وي.

# اسم تفضيل دَ استعمال صورتونه

دَ اسم تفضيل داستعمال درې طريقي دي.

(1) استعمال په من سره:زَيْدٌ أَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو.

(2) په الف لام سره: جَاءَنِيْ زَيْدٌ نِ الْأَفْضَلُ.

(3) په اضافت سره: زَيْدٌ أَفْضَلُ الْقَوْمِ.

په اولني صورت کښ به اسم تفضيل هميشه له پاره مفرد مذکر وي په دويم صورت کښ به اسم تفضيل دخپل موصوف سره مطابق وي.

زَيْدُنِ الْأَفْضَلُ، الزَّيْدَانِ الْأَفْضَلَانِ، الزَّيْدُوْنَ الْأَفْضَلُوْنَ، هِنْدٌنِ الْفُضْلىٰ، اَلْهِنْدَانِ الْفُضْلَيَانِ، اَلْهِنْدَاتُ الْفُضْلَيَاتُ.

په دريم صورت کښ اسم تفضيل مفرد مذکر او دخپل موصوف مطابق راوړل دواړه جائز دي. زَيْدٌ أَفْضَلُ الْنَّاسِ، اَلزَّيْدَانِ يَا اَلزَّيْدُوْنَ أَفْضَلُ الْنَّاسِ، هِنْدٌ أَفْضَلُ الْنَّاسِ، اَلْهِنْدَانِ أَفْضَلُ الْنَّاسِ، اَلْهِنْدَاتُ أَفْضَلُ النَّاسِ.

په دي بره مثالونو کښ اسم تفضيل مفرد مذکر دے.

زَيْدٌ أَفْضَلُ النَّاسِ، اَلزَّيْدَانِ أَفْضَلاَ النَّاسِ، اَلزَّيْدُوْنَ أَفْضَلُوْ النَّاسِ، هِنْدٌ فُضْلىٰ النِّسَاءِ، اَلْهِنْدَانِ فُضْلَيَا النِّسَاءِ، اَلْهِنْدَاتُ فُضْلَيَاتُ النِّسَاءِ په دي مثالونو کښ اسم تفضيل د خپل موصوف سره مطابق دے.

فائده: په اسم تفضيل كښې كله مطلق زيادت مراد وي په غير باندي د زيادت لحاظ مراد نه وي زَيْدٌ أَفْضَلُ.

فائده: داسم تفضيل فاعل هميشه ضمير غائب وي يو صورت داسي دے چه په هغه كښې فاعل اسم ظاهر وي هغه داد ے چه اسم تفضيل د لفظ په اعتبار سره د يو څيز صفت وي او د معني په اعتبار سره دداسي څيز صفت وي چه په اولني څيز او په غير كښې مشترک وي او اسم تفضيل منفي مثبت نه وي.

مثال: مَا رَأَيْتُ رَجُلًا أَحْسَنَ فِيْ عَيْنِهِ الْكُحْلُ مِنْهُ فِيْ عَيْنِ زَيْدٍ.

ترجمه: ماداسي يو سړے نه د ے ليدلے چه د هغه په ستر ګو كښې سرمه (رانجۀ) دهغه سرمه نه ډيره ښائسته وه كومه چه دزيد په ستر ګو كښې ده په دي مثال كښې أَحْسَنْ اسم تفضيل صيغه د لفظ په اعتبار سره د رَجُلٌ صفت د ے او په حقيقت د كُحَلْ صفت د ے چه په ستر ګه د رَجُلْ او په ستر ګه د زَيْدٌ كښې مشترک د ے او دأَحْسَنَ فاعل كُحَلْ د ے چه اسم ظاهر د ے.

## اتم قسم: مصدر

دَ مصدر تعريف: مصدر هغه اسم ته وائي چه د هغه نه اسماء او افعال مشتق كيږي.

دَ مصدر نشاني: نشاني ئي داده چه د فارسي ترجمه كولو په وخت كښې به ئي په آخر كښې دن اوتن راځي اَلضَّرْبُ زدن اَلْقَتْلُ كشتن په اردو كښې لفظ "نا" راځي اَلْضَّرْبُ مارنا په پښتو كښې "لام ساكن" راځي اَلْضَّرْبُ وهل.

دَ مصدر عمل: دادخپل فعل په شانته عمل كوي كه فعل ئي لازمي وي نو دا به هم لازمي وي او فاعل ته به رفع وركوي كه فعل ئي متعدي وو كه بيک يا دو يا سه نو دا به هم هغسه وي.

عمل لپاره شرط: د مصدر د عمل له پاره شرط دا دے چه په ترکيب کښې به مفعول مطلق واقع نه وي که وو نو عمل به نه کوي بلکه فعل به عمل کوي. مثال : ضَرَبْتُ ضَرْبًا زَيْدًا کښې زَيْدًا لره نصب ضَرَبْتُ ورکړے دے ځکه چه فعل عامل قويه دے او مصدر عامل ضعيف دے.

## نهم قسم: اسم مضاف

دَ اسم مضاف تعريف: يعني هغه اسم چه چاته مضاف وي مضاف خپل مضاف اليه ته جر ورکوي.

مثال: غُلَامُ زَيْدٍ نور تفصيل مخکښې ذکر شوے دے دلته دومره پيژندل ضرور دي چه مضاف مضاف اليه ته جر ورکوي په تقدير دحرف جر سره ځکه چه مضاف جامد وي او جامد عمل نشي کولے او تقدير به د معنې نه معلوميږي.

کله به دَ مضاف او مضاف اليه په درميان کښې لام مقدر وي. غُلَامُ زَيْدٍ په اصل کښې غُلَامٌ لِّزَيْدٍ او ديته اضافت لاميه وائي.

کله به د مضاف او مضاف اليه په مينځ کښې مِنْ مقدر وي خَاتَمُ فِضَّةٍ په اصل کښې خَاتَمٌ مِنْ فِضَّةٍ وه او ديته اضافت مني يا اضافت بيانيه وائي

او يا به مضاف او مضاف اليه په مينځ کښې فِيْ مقدر وي صَوْمُ الْيَوْمِ په اصل کښې صَوْمٌ فِيْ الْيَوْمِ وؤ او ديته اضافت فوي وائي.

## لسم قسم: اسم تام

دَ اسم تام تعريف: اسم تام هغه اسم ته وائي چه په خپل موجوده حالت کښې بل اسم ته مضاف نه وي.

داسم تام عمل: داتميز ته نصب ورکوي.

داسم تام د تام کیدلو صورتونه : تقریبا شپږ دي.

(1)کله به اسم تام کیږي په تنوین لفظي سره. مَا فِيْ السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ سَحَابًا.

(2)کله به اسم تام کیږي په تنوین مقدره سره. عِنْدِيْ أَحَدَ عَشَرَدِرْهَمًا، چه په اصل کښې أَحَدٌ وَّعَشَرٌ وه.

(3) کله به اسم تام کیږي په نون د تثنیه سره. عِنْدِيْ قَفِيْزَانِ بُرًّا.

(4)کله به اسم تام کیږي په نون د جمع سره. هَلْ نُنَبِئُكُمْ بِالْأَخْسَرِيْنَ أَعْمَالًا.

(5)کله به اسم تام کیږي په هغه نون سره چه هغه مشابه وي د نون د جمع سره. عِنْدِيْ عِشْرُوْنَ دِرْهَمًا.

(6)کله به اسم تام کیږي په اضافت سره. عِنْدِيْ مِلْؤُهُ عَسَلًا.

فائده: اسم تام د فعل د مشابهت د وجه نه عامل دے څنګه چه فعل په فاعل باندي مکمل کیږي نو دغسي دااسم تام هم په مذکوره څیزونوسره تام کیږي او اسم تام به هغه وخت کښې عامل وي چه کله په دي کښې ابهام وي او تمیز دغه ابهام لري کړي (زاد الفقیر)

## تمرين (32)

په اسمائے عامله کښې اسم تفضیل، مصدر، اسم تام، اسم مضاف، د عمل نشاندهي وکړي ترجمهٔ او ترکیب هم وکړي.

جَاءَنِيْ زَيْدُنِ الْأَعْظَمُ ، يَجْتَمِعُ الْمُسْلِمُوْنَ يَوْمَ الْعِيْدِ، أَخُوْكَ أَقْرَبُ الْقَوْمِ، هَلْ أُرِيْكُمْ بِالْقَاصِدِيْنَ بَيْتَ اللهِ، كَلَامُكَ أَصْعَبُ الْكَلَامِ، خَاتَمُهُ خَاتَمُ ذَهَبٍ، مَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللهِ قِيْلاً، حُسْنُهُ أَكْثَرُ النَّاسِ، أَعْجَبَنِيْ قِيَامُ زَيْدٍ، إِطَاعَتُكَ أَبَاكَ أَجْرٌ عَظِيْمٌ، خَاتَمُ هَاشِمٍ خَاتَمُ فِضَّةٍ،هُمْ أَخْوَفُ مِنْكُمْ تَقْوىٰ، زَيْدٌ أَوْرَعُ مِنْ بَكْرٍ، خَالِدٌ أَرْضىٰ مِنْ عَمْرٍو، هَلْ عِنْدَكَ قَفِيْزَانِ رُزًّا، أَعِنْدَكَ

أُوْقِيَّةٌ ذَهَبًا،وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا، أَعْجَبَنِيْ ضَرْبُ زَيْدٍ مِنْ عَمْرٍو، إِنْسَائُكَ كَلَامَ اللّٰهِ مَعْصِيَةٌ كَبِيْرَةٌ، أَعْجَبَنِيْ سُكُوْتُ هَاشِمٍ، رَأَيْتُ دَارَ زَيْدٍ، اِحْمَرَّ وَجْهُ عَمْرٍو، إِنِّيْ رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا، هَلْ أُنَبِّئُكَ بِالْأَسْمَعِيْنَ قُرْآنًا، فِيْ الْفَصْلِ عِشْرُوْنَ طَالِبًا، فِيْ الْمَدْرَسَةِ ثَلَاثُوْنَ مُعَلِّمًا.

## يولسم قسم: اسمائے كنايه

تعريف ئې مخکښې تير شوے دے.

اسمائے كنايه په دوه قسمه دي يو هغه چه د جملي نه كنائي وي او بل هغه چه د عدد نه كنائي وي كوم چه د جملي نه كنائي وي هغه عمل نه شي كولے يا كوم چه د قول نه كنائي وي هغه هم عامل نه دے. (فتح المنير)

او چه د عدد نه كنائي وي هغه عمل كولے شي او هغه دووه لفظه دي كَمْ او كَذَا.

كم په دوه قسمه دے كم استفهاميه او كم خبريه.

كم استفهاميه: خپل تميز ته نصب وركوي ځكه چي كم استفهاميه راځي لپاره د مطلق عدد كَمْ رَجُلًا عِنْدَكَ

فائده: عدد په دري قسمه دي: عدد أقل، عدد أوسط، عدد أكثر

اول: عدد اقل لكه يو نه تر لسو پوري تميز به ئي جمع مجرور راځي ثلاثةُ رِجَالٍ، ثَلَاثَةُ أَقْلَامٍ.

دوم:عدد أوسط لكه أَحَدَ عَشَرَ نه تر تِسْعَةٌ وَّتِسْعِيْنَ پوري تميز به ئي مفرد منصوب وي. أَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا، أَرْبَعُوْنَ يَوْمًا.

دريم: عدد أكثر لكه د مِائَةٌ ، اَلْفٌ نه چه بره وي او تميز به ئي مفرد مجرور وي مثال: مِائَةُ رَجُلٍ.

نوټ: كم استفهاميه ته تميز د عدد أوسط وركړے شوے دے ځكه چه خَيْرُ

الْأُمُوْرِ أَوْسَطُهَا.

دَ كم خبريه تميز به مجرور وي. كَمْ مَالٍ أَنْفَقْتُ.

كذا: تميز به منصوب وي. عِنْدِيْ كَذَا دِرْهَمًا.

ضابطه: د كم استفهاميه او خبريه د پيژاندلو طريقه: كه د كم نه بعد مخاطب صيغه وه نو كم استفهاميه به وي او كه د متكلم وه نو كم خبريه به وي.

دويمه ضابطه: كم استفهاميه د جواب محتاجه وي او جواب طلب كوي او كم خبريه د جواب محتاجه نه وي. (زاد الفقير)

## عامل معنوي

د عوامل لفظي بحث ختم شو اوس د عوامل معنوي بحث شروع كوي.

دعامل معنوي تعريف: هغه ته وائي چه په هغي تلفظ نه كيږي يا چه په نظر نه راځي، مثال: زيدٌ قائمٌ، او دا په دوه قسمه دي (1) ابتدا (2) خلو.

## ابتداء

هغه اسم چه د عوامل لفظي نه خالي وي نو دغه عوامل معنوي به مبتداء او خبر ته رفع وركوي: زَيْدٌ قَائِمٌ.

دلته مبتداء او خبر دواړه مرفوع دي د عامل معنوي ابتداء د وجه نه.

د مبتداء او خبر په عامل كښ دري مذهبه دي:

① په دواړو كښ عامل معنوي ابتدا عمل كړے دے.

② په مبتدا كښ ابتدا عمل كړے دے او په خبر كښ مبتدا عمل كړے دے.

③ مبتدا او خبر په يو بل كښ عمل كړے دے.

## دوم: خلو مضارع از ناصب وجازم فعل مضارع را برفع کند

دويم قسم:هغه فعل مضارع چه د حروف جوازم او نواصب نه خالي وي نو دا عامل معنوي به فعل مضارع ته رفع ورکوي مثال:يَضْرِبُ زَيْدٌ کښ يَضْرِبُ مرفوع دے ځکه چه دا د حروف نواصب او جوازم نه خالي دے.

## تمرين (33)

کم استفهاميه وخبريه او د عامل معنوي نشاندهي وکړے ترجمه وترکيب وکړے

كَمْ دَارًا بَنَيْتَ، سَيِّدُ الْقَوْمِ فِيْ السَّفَرِ خَادِمُهُمْ، تُسْئَلُوْنَ عَنْ أَعْمَالِكُمْ، كَمْ غُلَامٍ مَلَكْتُ، بِكَمْ دِرْهَمًا إِشْتَرَيْتَ الْكِتَابَ، اَلسَّفَرُ وَسِيْلَةُ الظَّفَرِ، يُنْفِقُوْنَ أَمْوَالَكُمْ، نَشْكُرُ اللّٰهَ، عِنْدِيْ كَذَا دِرْهَمًا، آفَةُ الْعِلْمِ اَلنِّسْيَانُ، يَدْخُلُوْنَ فِيْ الْإِسْلَامِ، اَلنَّقْدُ خَيْرٌ مِنَ النَّسِيْئَةِ، بَعْضُ الْأَقَارِبِ كَالْعَقَارِبِ، تُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتَابِ كُلِّهِ، كَمْ يَوْمًا مَضٰى مِنْ هٰذَا الشَّهْرِ، كَمْ رَجُلًا نَصَرْتَهُ، نَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ، كُلُّ جَدِيْدٍ لَذِيْذٌ، عِنْدَكَ كَذَا وَ كَذَا دِرْهَمًا، كَمْ غُلَامًا ضَرَبْتَهُ.

## خاتمه در فوائد متفرقه

په خاتمه کښ به دري فصلونه ذکر کوي، په فصل اول کښ د توابع بيان کوي.

## توابع

توابع جمع د تابع ده او تابع په لغت کښ پيروي او روسته راتلونکي ته وائي.
تابع په اصطلاح کښ هغه لفظ ته وائي چه د اولني لفظ په اعتبار سره په

دويم ځائے وي او چه د کوم سبب د وجه نه اعراب په اولني لفظ راغلے وي نو هم ددغه وجه نه او سبب نه اعراب په دغه دويم لفظ راغلے وي.
بيا دا تابع په پنځه قسمه دے:
(1) صفت، (2) تاكيد، (3) بدل، (4) عطف بيان، (5) عطف بالحرف.

## اولني قسم: صفت

دلته به تابع ته صفت وائي او متبوع ته به موصوف وائي.
دصفت تعريف: صفت هغه تابع ته وائي چه د موصوف يا د موصوف د متعلق ښه يا بد حال بيان کړي.
د تعريف نه معلومه شوه چه صفت په دوه قسمه دے.
(1) صفت بحاله (2) صفت بحال متعلقه
جَاءَنِيْ رَجُلٌ تَارِكُ الصَّلَاةِ، جَاءَنِيْ رَجُلٌ أَبُوْهُ عَالِمٌ
نور تفصيل يه په مرکب توصيفي کښ ذکر شوے دے.
فائده: نکره لپاره جملۀ خبريه صفت هم واقع کيږي ليکن په دغه جمله کښ به يو ضمير داسي وي چه نکري ته به راجع وي چه دغه ضمير د جملي او نکره په درميان کښ ربط پيدا کړي ځکه چه هره جمله مستقله وي دخپل ماقبل سره ئي تعلق نه وي.
مثال: جَاءَ نِيْ رَجُلٌ أَبُوْهُ عَالِمٌ، رَجُلٌ موصوف دے او أَبُوْهُ عَالِمٌ ئي صفت دے او جمله ده او "ہ" په کښ رَجُلٌ ته راجع دے.
فائده①: ضمير موصوف او صفت نه واقع کيږي.
فائده②: دَ صفت فائده داده که چرته موصوف معرفه وه نو د صفت د وجه نه به ئي وضاحت کيږي مثال: زَيْدُ نِ الظَّرِيْفُ.
فائده③: که چرته موصوف نکره وه نو صفت به په کښ تخصيص پيدا

كوي مثال: رَجُلٌ فَاضِلٌ، رَجُلٌ عَالِمٌ.

فائده④: او كله داسي هم وي چه صفت د موصوف د توضيح او تخصيص له پاره نه راځي بلکه د موصوف دمدح يا ذم له پاره راځي مثال: بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ، أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيمِ.

## دويم قسم : تاكيد

تابع ته به تاكيد او متبوع ته به مؤكد وائي

دَ تاكيد تعريف:تاكيد هغه تابع ته وائي چه د مؤكد حالت په اعتبار د نسبت يا په اعتبار د شمول افرادو سره مضبوط کړے چه سامع ته شک او شبه پاتي نه شي.

د نسبت په اعتبار سره د مضبوطولو مطلب دادے چه تاكيد مسند او مسند اليه لره مضبوط کړي مثال: زَيْدٌ زَيْدٌ قَائِمٌ

دويم زَيْدٌ اولني زَيْدٌ لره قيام مضبوط کړو شمول مطلب دادے چه تاكيد دا ثابت کړي چه مؤكد تمام افرادو لره شامل دے جَاءَنِيْ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ کښې كل دا ثابت کړو چه مجيئت د قوم ټول افرادو ته شامل دے.

## تاكيد بر دو قسم است تاكيد لفظي و تاكيد معنوي

تاكيد لفظي تعريف:هغه ته وائي چه په لفظ کښې تكرار وي خواه كه اسم وي كه فعل وي او كه حرف وي.

جَاءَ جَاءَ زَيْدٌ ضَرَبَ ضَرَبَ زَيْدٌ، إِنَّ إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ، إِنَّ زَيْدًا إِنَّهُ (ريح العبير)

تاكيد معنوي: چه په دي اتۀ الفاظو نَفْسٌ، عَيْنٌ، كِلاَ ، كِلْتَا، كُلٌّ، أَجْمَعُ، أَكْتَعُ، أَبْتَعُ، أَبْصَعُ کښې په يو سره واقع شي.

تفصيل:نَفْسٌ او عَيْنٌ:د مفرد تثنيه جمع مذكر مؤنث د ټولو دتاكيد دپاره

راځي چه کله د مفرد د تاکيد له پاره راشي نو دا به پخپله هم مفرد وي او په آخر کښ به ئې ضمير هم د مفرد وي جَاءَنِيْ زَيْدٌ نَفْسُهُ وَعَيْنُهُ او چه کله دتثنيه د تاکيد لپاره راشي نو دا به تثنيه او جمع دواړه راځي البته په آخر کښ به ئي ضمير د تثنيه وي جَاءَنِيْ الزَّيْدَانِ نَفْسَاهُمَاوَعَيْنَاهُمَا، أَوْ جَاءَنِيْ الزَّيْدَانِ أَنْفُسَهُمَاوَأَعْيُنَهُمَااو چه که د جمع د تاکيد له پاره راشي نو دا به پخپله هم جمع وي او په آخر کښ به ئي ضمير هم د جمع وي جَاءَنِيْ الزَّيْدُوْنَ أَنْفُسَهُمْ وَأَعْيُنَهُمْ.

مؤنث به هم په دغه ترتيب سره راځي جَاءَتْنِيْ هِنْدٌ نَفْسُهَا وَ عَيْنُهَا، جَاءَتْنِيْ الْهِنْدَانِ أَنْفُسَهُمَا وَ أَعْيُنَهُمَا، جَاءَتْنِيْ الْهِنْدَانِ نَفْسَاهُمَا وَ عَيْنَاهُمَا، جَاءَتْنِيْ الْهِنْدَاتُ أَنْفُسَهُنَّ.

كِلَا أَوْ كِلْتَا: دا دواړه د تثنيه سره خاص دي "کلا" د مذکر او "کلتا" د مؤنث د تاکيد له پاره راځي جَاءَنِيْ الزَّيْدَانِ كِلَاهُمَا، أَوْجَاءَتْنِيْ الْهِنْدَانِ كِلْتَاهُمَا.

كُلُّ: داد مفرد او جمع د تاکيد له پاره راځي د تثنيه د تاکيد له پاره نه راځي دَ مفرد مثال: قَرَأْتُ الْكِتَابَ كُلَّهُ،جمع مثال: جَاءَنِيْ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ.

أَجْمَعُ، أَكْتَعُ، أَبْتَعُ، أَبْصَعُ داد مفرد او جمع د تاکيد له پاره راځي.

فائده: تاکيد معنوي الفاظ کله نه کله غير تاکيد هم واقع کيږي يعني بحسب العامل فاعل مفعول به خبر وغيره مثال : إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنْفُسَكُمْ بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ.

نوټ: په دي څلورو کښ أَجْمَعُ اصل دے باقي دري ئي فرع دي ځکه چه باقي دري واړه د أَجْمَعُ نه بغير استعماليدے نشي او نه ترينه مقدم کيدے شي.

أَجْمَعُ، أَكْتَعُ، أَبْتَعُ، أَبْصَعُ: که په دي کښ په هر يو سره تاکيد راوړلے شي نو ضمير به په کښ نه وي بلکه په دي څلورو صيغو کښ به تغير واقع کيږي

چه د کوم اسم تاکیدواقع شي نو دهغه اسم مطابق به صیغه راوړلے شي واحد مذکر کښې به واحد مذکر مثال: إِشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ أَجْمَعُ،أَبْتَعُ، أَبْصَعُ او واحد مؤنث تاکید به واحد مؤنث وي قَرَأْتُ الصَّحِيْفَةَ جَمْعَاءُ كَتْعَاءُ بَتْعَاءُ بَصْعَاءُ.

د جمع مذکر له پاره به تاکید جمع مذکر وي جَاءَنِيْ الزَّيْدُوْنَ أَجْمَعُوْنَ، أَكْتَعُوْنَ، أَبْتَعُوْنَ، أَبْصَعُوْنَ د جمع مؤنث تاکید به جمع مؤنث راځي قَرَأْتِ النِّسَاءُ جُمَعُ، كُتَعُ، بُتَعُ، بُصَعُ.

## تمرین (34)

صفت بحال و متعلقه او تاکید لفظي او معنوي متعین کړے او ترجمه او ترکیب وکړے.

جَاءَ حَمِيْدُ نِ الْأَفْضَلُ، قَرَأْتُ الرِّسَالَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا، هٰذَا سَعِيْدٌ سَعِيْدٌ، قَرَأْتُ فِيْ كِتَابٍ مُفِيْدٍ، اَلْإِسْلَامُ دِيْنٌ قَيِّمٌ، حَمِدَ حَمِدَ بَكْرٌ، وَقَفْتُ بِعَرَفَاتٍ نَفْسَهَا، شَاهَدْتُ الْحُجَّاجَ أَنْفُسَهُمْ، قَرَأْتُ كِتَابًا مُفِيْدًا، قَطَفْتُ الْوَرْدَةَ الْجَمِيْلَةَ، يَلْبَسُ سَعِيْدٌ حِذَاءً وَاسِعًا، رَبِحَ التَّاجِرُ الْأَمِيْنُ، شَاهَدْتُ الْكَعْبَةَ عَيْنَهَا، زَارَنِيْ الصِدِّيْقَانِ كِلَاهُمَا، هٰذَا رَجُلٌ عَالِمٌ أَخُوْهُ، اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمُ، فِيْهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ، فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى، إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ نُطْفَةٍ أَمْشَاجٍ، أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ، خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا، لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهِ، فَأَغْرَقْنٰهُمْ أَجْمَعِيْنَ، وَ يَرْضَيْنَ بِمَا آتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ، قُلْ إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلّٰهِ، وَ عَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا، كَذَّبُوْا بِآيٰتِنَا كُلِّهَا، فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعِيْنَ، لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِيْنَ، جَاءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا، إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا.

## دريم قسم: بدل

دلته به تابع ته بدل وائي او متبوع ته به مبدل منه وائي.

لغوي معني: بدل په لغت کښې عوض ته وائي.

دَ بدل تعریف: بدل هغه تابع ته وائي چه مقصود بالنسبت وي يعني چه د کوم حکم نسبت مبدل منه طرف ته شوے وي نو په هغه سره مقصود مبدل منه نه وي بلکه بدل وي او مبدل منه صرف د تمهید لپاره ذکر کولے شي.

بدل په څلور قسمه دے:

① بدل الکل: چه د بدل اومبدل منه مصداق یو وي، مثال: جَاءَنِيْ زَيْدٌ أَخُوْكَ، قَرَأْتُ الْكِتَابَ عِلْمَ النَّحْوِ.

② بدل البعض: چه بدل د مبدل منه د مصداق جزء او حصه وي مثال: ضَرَبَ زَيْدٌ رَأْسُهُ.

③ بدل الاشتمال: چه بدل د مبدل منه سره متعلق وي مثال: سُلِبَ زَيْدٌ ثَوْبُهُ.

④ بدل الغلط: چه د غلطي نه بعد ووئیلے شي مثال: مَرَرْتُ بِرَجُلٍ حِمَارٍ، إِشْتَرَيْتُ فَرَسًا حِمَارًا.

فائده: د معرفه او نکره په اعتبار سره د مبدل منه او بدل څلور اقسام دي.

(1) چه دواړه معرفي وي جَاءَنِيْ زَيْدٌ أَخُوْكَ.

(2) چه دواړه نکري وي جَاءَنِيْ رَجُلٌ غُلَامٌ لَكَ.

(3) مبدل منه نکره او بدل معرفه وي جَاءَنِيْ غُلَامٌ لَكَ زَيْدٌ.

(4) مبدل منه معرفه او بدل نکره وي جَاءَنِيْ زَيْدٌ غُلَامٌ لَكَ.

فائده: دَ اسم ظاهر او ضمير په اعتبار سره د مبدل منه او دَ بدل څلور اقسام دي.

(1) چه دواړه اسم ظاهر وي: جَاءَنِيْ زَيْدٌ أَخُوْكَ.

(2) چه دواړه اسم ضمير وي: زَيْدٌ ضَرَبْتُهُ إِيَّاهُ.

(3) مبدل منه اسم ظاهر او بدل ضمير وي: أَخُوْكَ ضَرَبْتُ زَيْدًا إِيَّاهُ.
(4) مبدل منه ضمير اوبدل اسم ظاهر وي: أَخُوْكَ ضَرَبْتُهُ زَيْدًا.

## څلورم قسم: عطف بالحرف

تابع ته معطوف او متبوع ته معطوف عليه وائي.
دَ عطف بالحرف تعريف: عطف بالحرف هغه تابع ته وائي چه په هغه کښ معطوف او معطوف عليه دواړه مقصود بالنسبت وي او معطوف روستو د حرف عطف نه ذکر وي جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَعَمْرٌو.
او دي ته عطف نسق هم وائي او د نسق معني ده ترتيب ورکول او کله کله معطوف د خپل معطوف عليه نه بعد په ترتيب سره راځي ځکه ورته عطف نسق وائي جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو ثُمَّ بَكْرٌ.
ان شاء الله نور تفصيل به په حروف عاطفه کښ راشي.
فائده: په ضمير مرفوع متصل باندي د عطف کولو شرط دا دے چه د هغه تاکيد له پاره به ضمير مرفوع منفصل راوړلے شي او مابعدبه ترينه حرف عطف راوړلے شي ضَرَبْتُ اَنَا وَزَيْدٌ په ضَرَبْتُ کښ چه کوم ضمير متصل دے په هغه باندي دزَيْدٌ عطف کړے شوے دے ليکن ددي نه مخکښ په آنَا ضمير سره تاکيد شوے دے، البته که د ضمير مرفوع متصل او د معطوف په درميان کښ فصل واقع شوے وي نو بيا د تاکيد ضرورت نشته ضَرَبْتُ الْيَوْمَ وَزَيْدٌ ځکه ئي تاکيد ذکر نه کړو چه فصل واقع شوے دے.
ضمير مجرور باندي که عطف وکړے شي نو د جار اعاده ضروري ده يعني که معطوف عليه دحرف جر د وجه نه مجرور وي نو په معطوف باندي به هغه حرف جر داخلولے شي لکه مَرَرْتُ بِكَ وَبِزَيْدٍ.

## پنځم قسم: عطف بيان

تابع ته عطف بيان او متبوع ته مبين وائي.

دَ عطف بيان تعريف: عطف بيان هغه تابع ته وائي چه د متبوع يعني د مبين وضاحت وکړي ليکن د صفت په شانته ئي په معني دلالت نه کوي.

نوټ: په علم او کنيت او لقب کښ چه کوم يو مشهور وي نو هغه به عطف بيان وي خو د شهرت دا شرط څه ضروري نه دے.

چه علم مشهور وي د هغه مثال: اَقْسَمَ بِاللّٰهِ أَبُوْ حَفْصٍ عُمَرُ أَبُوْ حَفْصٍ مبين او عُمَرُ عطف بيان دے البته د عُمَرُ نوم د کنيت نه زيات مشهور دے ځکه عطف بيان جوړ کړے شوے دے.

چه کنيت مشهور وي د هغه مثال: قَضٰي يَعْقُوْبُ أَبُوْ يُوْسُفَ يَعْقُوْبُ مبين او أَبُوْيُوْسُفَ عطف بيان دے.

او چه لقب مشهور وي د هغي مثال: جلال الدين سيوطي يا جلال الدين حقاني

## تمرين (35)

د بدل قسمونه او عطف بالحرف او عطف بيان تلاش کړي ترجمه او ترکيب هم وکړي.

قُتِلَ أَصْحٰبُ الْأُخْدُوْدُ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُوْدِ، إِنَّ هٰذَا لَفِي الصُّحفِ الأُوْلىٰ صُحُفِ إِبْرَاهِيْمَ وَمُوْسٰى، آمَنَّا بِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ رَبِّ مُوْسٰى وَهَارُوْنَ، خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ سَيْفُ اللّٰهِ صَحَابِيٌّ، وَأَوْحَيْنَا إِلىٰ إِبْرَاهِيْمَ وَإِسْمَاعِيْلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْأَسْبَاطَ، فَأَخَذْنَاهُ وَجُنُوْدَهُ، إِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ مَفَازًا حَدَائِقَ وَّأَعْنَابًا، إِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ صِرَاطَ الَّذِيْنَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ، لَنَسْفَعًا بِّالنَّاصِيَةِ

نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ، حَتّٰى تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰهِ، يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ، قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ مَلِكِ النَّاسِ إِلٰهِ النَّاسِ، فَأَنْجَيْنَاهُ وَأَصْحَاب السَّفِيْنَةِ، قَرَأْتُ الْكِتَابَ حَتّٰى خَاتَمْتُهُ، أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ صَبًّا ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ شَقًّا، ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ، لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ، كُوْنُوْا هُوْدًا أَوْ نَصَارًا، جَاءَعَبْدُ اللّٰهِ أَبُو الْبَرَكَاتِ، فَعَلَيْهِ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِيْنَ، جَاءَنِي زَيْدٌ وَعَمْرٌو.

## فصل دوم: دربيان غير منصرف

په دويم فصل کښې د منصرف او غير منصرف بيان دے تفصيل ئي د اسم غير متمکن په 16 اقسامو کښې تير شوے دے.

## فصل سوم در حروف غير عامله

هغه حروف چه د رفع نصب او جزم عمل نه کوي هغه ته حروف غير عامله وائي او دا ټول شپاړس دي نو دي فصل کښې ټول حروف غير عامله نه دي بلکه بعض په کښې عامله هم دي لکه مصدريه کښې أَنْ او زائده کښې بَا، مِنْ کَاف وغيره.

## اول قسم:حروف تنبيه

تنبيه: په لغت کښې خبرداري او اګاه کولو ته وائي.

دَ تنبيه وجه تسميه:دي ته حروف تنبيه ځکه وائي چه ددي په ذريعه سره مخاطب خبردار کيدے شي او دا دري حروف دي أَلَا، أَمَا، هَا.

أَلَاو أَمَا په جمله اسميه او فعليه دواړو داخليږي أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ، أَلَا لَا تَنْصُرْ، أَمَالَا تَفْعَلْ هَا په جمله اسميه او مفرد باندي داخليږي هَا زَيْدٌ قَائِمٌ مفرد

مثال: هٰذَا، هٰؤُلَاءِ.

## دويم قسم: حروف ايجاب

ايجاب: په لغت کښې ثابت کولو ته وائي.

دَ حروف ايجاب وجه تسميه: دي ته حروف ايجاب ځکه وائي چه د خپل ما قبل جمله ثابت کولو له پاره راځي دا ټول شپږ حروف دي.

نَعَمْ، بَلٰي،أَجَلْ، إِيْ، جَيْرِ، إِنَّ.

نَعَمْ: داد ماقبل جملي د ثابت کولو له پاره راځي خواه که جمله خبريه وي يا انشائيه وي بيا که مثبته وي که منفيه وي مثال: ستا نه څوک تپوس وکړي مَا قَامَ زَيْدٌ ته په جواب کښې ووائي "نَعَمْ" دويم: چه څوک ستا نه تپوس وکړي أَجَاءَ زَيْدٌ ته په جواب کښې ووائي "نَعَمْ".

بلٰي: د کلام منفي په جواب کښې راځي او هغه په مثبت سره بدلوي خواه که نفي استفهام سره وي يا نفي خبريه سره وي.

دالله تعالي دقول أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ جواب قَالُوْا بَلٰى.

د نفي خبريه مثال: لَمْ يَرْكَبْ زَيْدٌ جواب بَلٰى.

إِيْ: دا د استفهام نه بعد د اثبات له پاره راځي او هميشه دقسم سره استعماليږي ليکن فعل قسم ورسره مذکور نه وي مثال: يو سړے د يو کار په باره کښې تپوس وکي هَلْ كَانَ كَذَا ته جواب ورکړي إِيْ وَاللهِ.

أَجَلْ، جَيْرِ،إِنَّ: دادري واړه دخبر د تصديق له پاره راځي خواه که خبر مثبت وي او که منفي وي.

د مثبت مثال جَاءَكَ زَيْدٌ ته په جواب کښې أَجَلْ، جَيْرِ، ياإِنَّ ذکر کړي چه بيشکه زما خواه ته زيد راغلے دے.

دکلام منفي مثال: لَمْ يَأْتِيْكَ زَيْدٌ ته په جواب کښې أَجَلْ، جَيْرِيا إِنَّ راوړي

ليکن د استفهام نه بعد نه راځي.

## دريم قسم: حروف تفسير

داد ماقبل جملي د ابهام لري کولو دپاره راځي او دا دوه حروف دي أَيْ، أَنْ.

أَيْ ددوه مفردين په مابين کښ راځي (فتح المنير)

يا أَيْ د مفرد او جملے دواړو د تفسير له پاره راځي، دَ مفرد مثال: جَاءَنِيْ أَبُوْ التُّرَابِ أَيْ عَلِيٌّ، نَصْرُكَ جَارِيْ أَيْ بَكْرٌ.

دَ جملے مثال: قُطِعَ رِزْقُهُ أَيْ مَاتَ، قَتَلَ زَيْدٌ بَكْرًاأَيْ ضَرَبَهُ ضَرْبًا شَدِيْدًا.

أَنْ: داد داسي فعل تفسير کوي چه د قول په معني وي نَادَيْنَاهُ أَنْ يَّا إِبْرَاهِيْمُ دلته نَادَيْنَا د قُلْنَا په معني دے او أَنْ تفسيريه دے يا أَنْ ددوه جملو په مابين کښ راځي. (فتح المنير)

## څلورم قسم: حروف مصدريه

داحروف خپل ما بعد جمله په تاويل د مصدر سره کوي او دادري حروف دي مَا، أَنْ، أَنَّ.

مَا او أَنْ په جمله فعليه باندي داخليږي او په تاويل د مصدر سره ئي کوي قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: وَضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ أَيْ بِرُحْبِهَا، فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوْا أَيْ قَوْلُهُمْ.

أَنَّ په جمله اسميه باندي داخليږي او په تاويل د مصدر سره ئي کوي أَنَّكَ قَائِمٌ أَيْ قِيَامُكَ.

## پنځم قسم:حروف تحضيض

تخضيض په لغت کښ: اماده کول او راتيزول ته وائي.

اصطلاح کښې تحضيض وائي تيزولو د مخاطب ته په يو کار باندې
او دا څلور حروف دي: أَلَا، هَلَّا، لَوْلَا، لَوْمَا دا څلور هميشه په فعل باندې
داخليږي خواه که فعل مضارع وي او که ماضي که په فعل مضارع باندې
داخل شي نو د تيزولو له پاره راځي هَلَّا تَضْرِبْ زَيْدًا، ته زيد ولې نه وهې.
او که په ماضي داخل شي نو د ملامت کولو او شرمنده کولو له پاره راځي
هَلَّا اَكْرَمْتَ زَيْدًا تا د زيد اکرام ولې ندے کړے.

نوټ: دغسې دا باقي حروف هم دي.
که چرته ددې حروف نه بعد د فعل په ځائے اسم راشي نو په دغه وخت کښې
به فعل پټ وي هَلَّا زَيْدًا ضَرَبْتَهُ، هَلَّا زَيْدًا تَضْرِبُهُ اصل کښې هَلَّاضَرَبْتَ زَيْدًا هَلْ
لَا تَضْرِبُ زَيْدًا هَلَّا تَأْكُلُ. (تسهيل النحو)

## شپږم قسم: حرف توقع

دَ توقع معنی اميد ده: حرف توقع صرف يو لفظ قد دے په حرف توقع سره
دداسې خبرو بيان کيږي چه د هغه اميد وي کله په مضارع او کله په
ماضي داخليږي که په مضارع داخل شي نو د تقليل له پاره راځي مثال: إِنَّ
الْكَذُوْبَ قَدْ يَصْدُقُ، وَإِنَّ الْجَوَّادَ قَدْ يَبْخُلُ.
که په ماضي داخل شي نو د تقريب له پاره راځي زمانه ماضي زمانه حال نه
قريب کوي قَدْ رَكِبَ.
قَدْ: کله د تحقيق له پاره راځي. قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ"منع کونکي" کله د قَدْ
او د هغه د فعل په مينځ کښې د قسم په ذريعه فصل واقع کيږي قَدْ وَاللّٰهِ
أَحْسَنْتَ په الله قسم ښه کار دې کړے دے.

## اووم قسم: حروف استفهام

دادرې حروف دي هَلْ، هَمْزَه او مَا، دا په جمله اسميه او فعليه دواړو باندې

داخليږي أَزَيْدٌ قَائِمٌ، هَلْ قَامَ زَيْدٌ (نور تفصيل مخکښ ذکر شوے دے).

## اتم قسم: حروف ردع

ردع په معنی د منع کولو سره راځي او دا صرف يو حرف دے کَلَّا دا حرف متکلم د کلام نه منع کوي او دا کله دخبر نه بعد راځي او کله د امر نه بعد راځي څوک ووائي فُلَانٌ يُبْغِضُكَ، ته په جواب کښ کَلَّا ذکر کړي يا څوک ووائي اِضْرِبْ زَيْدًا ته په جواب کښ کَلَّا ذکر کړے. کَلَّا کله د حَقًّا په معنی راځي يعني د جملي د تحقيق له پاره مثال: كَلَّا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَيَطْغٰى داخبره يقيني ده چه انسان سرکشه دے. كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ.

## نهم قسم: تنوين

تنوين: هغه نون ساکن ته وائي چه د کلمي دآخري حرکت تابع وي او د فعل د تاکيد له پاره نه وي.

تنوين په پنځه قسمه دے:

تنوين به پنج قسم شد اے يارو منبګير

اول تمکن است ثاني عوض ثالث تنکير

ديګر مقابله است ترنم برادرم

اي پنج قسمين ياد کند که شوي شاهي بينظير

① تنوين تمکن: هغه ته وائي چه د اسم په منصرف والي دلالت کوي چه دا اسم منصرف دے او غير منصرف نه دے زَيْدٌ، رَجُلٌ.

② تنوين تنکير: هغه تنوين ته وائي چه د اسم په نکره والي باندي دلالت وکړي مثال: صَهٍ معني په يو وخت کښ خاموش شه.

او که بغير د تنوين نه وي صَهْ نو معني ئي ده اوس چپ شه.

③ تنوين عوض: هغه تنوين ته وائي چه په مضاف باندي د مضاف اليه په عوض کښې راشي حِيْنَئِذٍ، يَوْ مَئِذٍ د يَوْمَ مضاف اليه كَانَ كَذَا وه ددي په عوض کښې ئي په ذال باندي تنوين راوړو ټول عبارت داسي دے يَوْمَ إِذْ كَانَ كَذَا.

④ تنوين مقابله: هغه تنوين ته وائي چه د جمع مؤنث سالم په آخر کښې راځي د جمع مذكر سالم د نون په مقابله کښې مُسْلِمَاتٌ.

⑤ تنوين ترنم: هغه تنوين ته وائي چه داشعارو او مصرعو په آخر کښې د آواز د ښائسته کولو دپاره راځي او دا تنوين د اسم ، فعل، حرف په آخر کښې راځي.

داسم او فعل مثال: قال الشاعر

أَقِلِّي الْيَوْمَ عَاذِلَ وَالْعِتَابَنْ     وَقُوْلِيْ إِنْ أَصَبْتُ لَقَدْ أَصَابَنْ

ترجمه: اے ملامت كونكيه ملامتي او عتاب كم كړه كه چرته زه ښه كار وكړم نو داسي خو وايه چه ښه كار دي كړے دے په دي شعر کښې عتاب اسم دے او اصاب فعل دے او د دواړو په آخر کښې تنوين ترنم دے.

دحرف مثال:

أَفِدِ التَّرَحُلُ غَيْرَ أَنَّ رِكَابَنَا     لَمَّا تَطُلْ بِرِحَالِنَا وَكَأَنْ قَدٍ

نون تاكيد: هغه تنوين ته وائي چه په امر او مضارع کښې تاكيد پيدا كوي او دا په دوه قسمه دے ثقيله: لَيَضْرِبَنَّ خفيفه: لَيَضْرِبَنْ امر اِضْرِبَنَّ.

## لسم قسم:حروف زيادت

دا ټول أته دي: إِنْ، أَنْ، مَا، لَا، مِنْ، كَافْ، بَا، لَامْ

كه چرته دا حروف د كلام نه حذف كړے شي نو د كلام په اصل معني کښې خلل نه پيدا كيږي ليكن مطلب ئي هر ګز دا نه دے چه بي فائدي دي بلكه د كلام د ښائسته والي لپاره راځي او په معني کښې تاكيد پيدا كوي ځكه

خو په قرآن مجید کښې استعمال دي.

إِنْ: په درې مواقعو کښې زائد وي.

① ما نافیه سره: مَا إِنْ زَیْدٌ قَائِمٌ، زید ولاړ نه دے.

② ما مصدریه سره: إِنْتَظِرْ مَا إِنْ یَجْلِسِ الْأَمِیْرُ.

③ لَمَّا سره: لَمَّا إِنْ جَلَسْتَ جَلَسْتُ.

أَنْ: دا په دوه صورتو کښې زائد وي.

① لَمَّا سره: فَلَمَّا أَنْ جَاءَ الْبَشِیْرُ.

② د لَوْ سره چه د لَوْ او ددي نه مخکښې قسم په مینځ کښې أَنْ واقع وي.

مثال: وَاللّٰهِ أَنْ لَوْ قُمْتَ قُمْتُ د وَاللّٰهِ او لَوْ په مینځ کښې أَنْ زائد دے.

لفظ ما: داده دي حروفو سره زائد وي. إِذَا، مَتٰي، أَيْ، أَنّٰی، أَیْنَ، او د إِنْ سره زا ئد وي خو په دي شرط سره چه دا کلمات د شرط لپاره نوي.

مثالونه: إِذَا مَاصُمْتَ صُمْتُ، مَتٰي مَا تَخْرُجْ أَخْرُجْ، أَیَّامَا تَدْعُوْا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰی أَنّٰی مَا تَذْهَبْ أَذْهَبْ، أَیْنَ مَا تَجْلِسْ أَجْلِسْ، إِمَّا تَقُمْ أَقُمْ.

ددي کلمات شرط نه علاوه ده دي حروفو نه بعد هم زائد راځي بَ، عَنْ، مِنْ، كَانَ.

مثالونه: فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللّٰهِ، عَمَّا قَلِیْلٍ لَیُصْبِحَنَّ نَادِمِیْنَ، مِمَّا خَطِیْئٰتِهِمْ أُغْرِقُوْا زَیْدٌ صَدِیْقِيْ كَمَا إِنَّ بَكْرٌ أَخِيْ.

دَ لا: زائد درې صورتونه دي یعني په درې ځایونو کښې به لا زائد وي.

① په کلام منفي کښې چه دَ حرف عطف نه بعد واقع وي. مَا جَاءَنِيْ زَیْدٌ وَلَا عَمْرٌو

② أن مصدریه نه بعد: مَا مَنَعَكَ أَنْ لَا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ.

③ د قسم نه مخکښې راشي لَا أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدْ.

من: دا دنفي نه بعد زائد وي. مَا جَاءَنِيْ مِنْ أَحَدٍ.

کاف: دا زائد وي د لَيْسَ نه بعد لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ.

با: داد نفي نه بعد زائد وي. مَا زَيْدٌ بقَائِمٍ.

دَ لام: مثال رَدِفَ لَكُمْ أَيْ رَدِفَكُمْ.

## يوولسم قسم: حروف شرط

دا دوه دي: أمّا، لَو.

دا دَ كلام په ابتداء كښ راځي چه مخاطب ته دَ مخكښ نه دَ كار نوعيت معلوم شي.

لَو: دا دَ ماضي لپاره راځي اګر كه په مضارع باندے داخل شي لكه لَو ضربْتَنِيْ ضربتُك، لَوْ تضْرِبْنِيْ أَضْرِبْك.

دَ دواړو يوه معنٰی ده كه تا ځه په زمانه ماضي كښ وهلے وے نو ما به هم ته وهلے وے.

أَمّا: دَ ماقبل اجمال دَ تفصيل دَ بيان لپاره راځي. فَمنهم شَقيٌّ وَّسَعِيدٌ تفصيل فَأَمَّا الذين شَقُوا فَفِي النّارِ وأَمَّا الذّين سُعِدُوا فَفِي الجنَّةِ.

نوټ: دَ أَمّا نه بعد هميشه فعل محذوف وي او په جواب كښ ئې فا راځي لكه أَمّا زيدٌ فَمُنْطَلِقٌ.

لَوْ راځي لپاره دَ انتفاء دَ ثاني په سبب دَ انتفاء دَ اول سره، ثاني نفي دے ځكه چه اول نفي دے. مثال: لَوْ كَانَ فيهما آلِهَةٌ إِلَّا اللّٰهُ لفَسَدَتا.

فساد دَ عالَم منتفي دے نو تعدّد دَ الٰه هم منتفي دے.

## دولسم قسم: لولا

لولا: راځي لپاره دَ انتفاء دَ ثاني په سبب دَ وجود دَ اول، لكه لَولَا عَلِيٌّ لَهَلَكَ عُمَرُ، علي رضی الله عنه موجود وو نو عمر رضی الله عنه هلاک نه شو.

## دیارلسم قسم: لام مفتوحه

لام مفتوحه: دا دَ تاکید لپاره راځي په اسم او فعل دواړو باندے داخلیږي، دَ اسم مثال: لَأَنْتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً. فعل مثال: إِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ.

## پنځلسم قسم: ما

ما: چه په معنٰی دَ مَا دام سره وي، مثال: أَقُوْمُ مَا جَلَسَ الْأَمِيْرُ.

## شپاړسم قسم: حروف عطف

حروف عطف: په لغت کښې مائله کولو ته وائي.

دا حروف هم معطوف په حکم او اعراب کښې معطوف علیه طرف ته مائله کوي.

شعر کښې:

گر حروف عطف خواهي بي خلل

یاد گیر این بیت میخوان در محل

واو، فاء، ثُمَّ، حَتّٰی نیز وأو

باء، أم، وإمّا، ولٰکن لا وَبَل

دا ټول لس دي.

واؤ، فاء، ثُمّ، حَتّٰی، أو، إِمَّا، أَمْ، لَا، بَلْ، لٰکنْ.

(1) واؤ: دَ مطلق جمع لپاره راځي خواه که معطوف او معطوف علیه په ترتیب وي او که نه وي. لکه جَاءني زیدٌ وَّعَمْرٌو، کُلُوْا واشْرَبُوا.

(2) فا: دا دَ ترتیب لپاره راځي بغیر دَ مهلت نه دَ فاء دَ ماقبل لپاره حکم اول ثابت وي او دَ ما بعد لپاره ئې روستو ثابت وي بغیر دَ تاخیر نه لکه جاءني زیدٌ فعمْرٌو.

(3) ثُمَّ: دا دَ ترتيب لپاره راځي سره دَ مهلت يعني دَ ثُمَّ دَ ماقبل لپاره حکم اول ثابت وي او دَ مابعد لپاره په تاخير سره ثابت کيږي. لکه دخَلَ زيدٌ ثُمَّ بَکرٌ.

(4) حَتّٰى: دا هم دَ ثُمَّ پشان دَ ترتيب او مهلت لپاره راځي ليکن دَ ثُمَّ په نسبت پکښې مهلت کم وي او دَ حَتّٰى عاطفه لپاره شرط دا دے چه معطوف به دَ معطوف عليه جزء وي، او کله به معطوف دَ معطوف عليه نه قوي وي، مثال: مَاتَ النَّاسُ حَتَّى الْأَنْبِيَاء، او کله به معطوف دَ معطوف عليه نه ضعيف وي لکه: قَدِمَ الْحَاجُّ حَتَّى الْمُشَاةُ.

نوټ: دَ حَتّٰى عاطفه لپاره شرط دا دے چه معطوف به په معطوف عليه کښې داخل وي.

(5، 6، 7) أو، إِمَّا، أَمْ: دا درے واړه په دے خبره باندے دلالت کولو لپاره راځي چه په معطوف عليه او معطوف کښې دَ يو لپاره حکم ثابت دے بغير دَ تعين نه، لکه: جَاء زيدٌ أو عمرٌو.

إِمَّا: دا به دَ عطف لپاره په هغه وخت کښې وي چه دَ دے نه مابعد به بله إِمّا يا أَو وي، مثال: العددُ إِمَّا زَوْجٌ وإِمَّا فَرْدٌ زَيدٌ إِمَّا کَاتِبٌ أَو اُمِيٌّ.

## أَمْ متصله او منقطعه

أَمْ: په دوه قسمه دے: (1)أمْ متصله، (2) منقطعه.

أَمْ متصله لپاره درے شرطونه دي: (1) مخکښې به ترينه همزه استفهاميه وي. لکه أَأَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَه أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُوْنَ.

(2)چه کوم لفظ دَ استفهام نه بعد وي نو دغسه به دَ أَمْ نه بعد هم وي که دَ همزه نه بعد اسم وي نو دَ أَمْ نه بعد به هم اسم وي که دَ همزه نه بعد فعل وي

دَ أَمْ نه بعد به هم فعل وي، لكه: أَزَيْدٌ عِنْدَكَ أَمْ بَكْرٌ، أَقَامَ زَيدٌ أَمْ قَعَدَ.

(3) دَ متكلم په نزد معطوف عليه او معطوف كښې يو يقيني طور باندے ثابت دے ليكن سوال صرف دَ تعين لپاره وي، مثال: أَزَيْدٌ عِندك أَمْ بكْرٌ.

أَمْ منقطعه: دَ مخكنې كلام دَ اعراض او په دويم كلام كښې دَ شک پيدا كولو لپاره راځي او دَ دينه مخكښې به همزه نه وي، مثال: چه دَ لرې نه يو ځناور وينې "إِنَّهَا لَإِبِلٌ" چه كله نزدے شي نو هغه بيزه وه نو ووئيل أَمْ هِيَ شاةٌ أي بَل هِيَ شاةٌ.

(8، 9، 10) لَا، بَل، لٰكِن: دا درے واړه په دے خبره باندے دلالت كولو لپاره راځي چه په معطوف عليه او معطوف كښې دَ يو لپاره حكم ثابت دے په تعين سره ليكن دَ تعين صورت ئې مختلف دے.

لَا به عاطفه په هغه وخت كښې وي چه ما بعد ئې دَ ماقبل لپاره ضد وي لكه جاءني رجُلٌ لا إمْرَأَةٌ او دَ معطوف نه حكم نفي كوي او دَ معطوف عليه لپاره ئې ثابت كوي.

بَل دَ اضراب لپاره راځي يعني حكم دَ معطوف عليه نه نفي كړي او دَ معطوف لپاره ئې ثابت كړي بيا به دَ دينه بعد يا جمله وي يا مفرد كه مفرد وه نو عاطفه به وي لكه ما جاءني زيدٌ بَل بكْرٌ او كه روستو ترينه جمله وه نو بيا به استينافيه وي كقوله تعالىٰ: قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّه فَصَلّٰى بَلْ تُؤْثِرُوْنَ الْحَيَاة الدُّنْيَا.

لٰكِن استدراك لپاره راځي دَ لٰكِن نه چه په مخكښې كلام كښې كوم وهم پيدا شوے وي دا دَ هغه وهم لرے كولو لپاره راځي او دے سره به نفي لازم وي بغير دَ نفي نه به نه استعماليږي لكه: قَامَ خَالِدٌ لٰكِن بَكْرٌ لَمْ يَقُمْ.

## تمرين (36)

كوم يو حروف غير عامله او په كومه معنٰى استعمال دي، ترجمه وتركيب وكړى.

أَلَا تَضْرِبُ، هَا سَعِيدٌ قَائِمٌ، أَمَا لَا تَنْصُرُ، قُلْنَا نَعَمْ، لَمْ يَضْرِبْ زيدٌ بَلٰى، جاءَكَ زيدٌ أَجَلْ، لَمْ يَأْتِك عمرٌو جَيْرِ، قَتَلَ زيدٌ بكرًا، أَيْ ضَرَبَه ضربًا شديدًا، قَامَ بكْرٌ لٰكن خالدًا لم يَقُمْ، مَا إِنْ رشيدٌ نائمٌ، أَنْ تصُوْمُوا خيرٌ لَّكُمْ، وَهُمْ يَتَخَافَتُوْنَ أَنْ لَّا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ مِسْكِيْنٌ، لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ، لَو مَا تَأْتِيْنَا بِا الْمَلائِكَةِ إِنْ كُنتَ مِنَ الصَّادِقِيْنَ، هَلَّا اكْرَمْتَ بكرًا، إِنَّ الجوادَ قَد يَبْخَلُ، هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمٰى وَالْبَصِيرُ، أَإِلٰهٌ مَعَ اللّٰهِ، أَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُه فَهُوَ فِي عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ، إِنْ تُكْرِمْنِيْ أُكْرِمْك، كَلَّا إِنَّ كِتَابَ الْفُجَّارِ لَفِيْ سِجِّيْن، كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ، فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ، قَالَ رَجُلٌ مؤْمِنٌ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ، رَأَيْنَا مسلماتٍ مؤمِنَاتٍ، النُّجُوْمُ مُسَخّراتٌ بِأَمْرِه، لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ، لِيَكُوْنَا مِنَ الصَّاغِرِيْنَ، وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْن، قَلِيْلًا مَّا تذكَّرُوْنَ، رَدِفَ لَكُمْ، هَلْ وَجَدْتُّمْ مَا وَعَدَ رَبّكُمْ، واللّٰهِ أَن لَوْ قَسُمْتَ قَسُمْتُ، يَا نَارُكُوْنِي بَرْدًا وَّسَلَامًا عَلٰى إِبْرَاهِيْم، يَا آدَمُ انْبِئْهُمْ بِأَسْمَائِهِمْ، أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ، ءَأَنْذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ، كُنْتُمْ أَمْوَاتًا فَأَحْيَاكُم ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ، أَزَيْدٌ عِنْدَكَ أَمْ عمرٌو، جاءَنِي رشيدٌ لَا سعيدٌ، رأَيْتُ زيدًا بَلْ عمْروًا، إِنَّهَا بَقَرَةٌ أَمْ هِيَ شَاةٌ.

# بحث مستثنٰی

مستثنٰی ماخوذ ده دَ ثني نه په معنٰی دَ ويستلې شوي سره.
مستثنٰی په اصطلاح کښ: مستثنٰی هغه لفظ دے چه دَ إِلَّا نه بعد يا دَ إِلَّا دَ هم مثلو نه بعد واقع وي. غَيْرَ، سِوٰی، سَوَآء، حَاشَا، خَلَا، عَدَا، مَا خَلَا، مَاعَدَا، لَيْسَ، لَا يَكُوْنُ چه دلالت وکړي په دے خبره چه دَ کوم حکم نسبت دَ إِلَّا نه ماقبل ته شوے دَ هغه حکم نسبت دَ إِلَّا مابعد طرف ته ندے شوے، لکه: جَاءنِي القومُ إِلَّا زيدًا.

فائده: دَ إِلَّا او دَ هغه دَ هم مثلو نه چه کوم لفظ ما بعد مذکور وي هغه ته مستثنٰی وائي او ماقبل لفظ ته مستثنٰی منه وائي، جاءني القومُ إِلَّا زيدًا، القومُ مستثنٰی منه إِلّا حرف استثناء زيدًا مستثنٰی.

فائده: دَ مستثنٰی دَ اعراب نه مخکښ يو څو خبرے بطور تمهيد يادول ضروري دي.

(1)الأول: مستثنٰی په دوه قسمه ده: (1) متصل، (2) منقطع.

① متصل: چه مستثنٰی دَ مستثنٰی منه دَ جنس نه وي يا چه مستثنٰی په مستثنٰی منه کښ داخله وي، مثال: جاءني القومُ إِلَّا زيدًا.

② منقطع: چه مستثنٰی دَ مستثنٰی منه دَ جنس نه نوي يا مستثنٰی په مستثنٰی منه کښ داخل نه وي، مثال: جاءني القومُ إِلَّا حِمَارًا.

(2)الثاني: دَ مستثنٰی منه په اعتبار سره دَ مستثنٰی دوه قسمه دي: (1)مفرّغ او (2)غير مفرّغ.

دَ مستثنٰی مفرّغ تعريف: مستثنٰی مفرّغ هغه ته وائي چه مستثنٰی منه ئې مذکور نه وي، مثال: مَا جَاءَنِي إِلَّا زيدٌ.

دَ مستثنٰی غير مفرّغ تعريف: هغه ته وائي چه مستثنٰی منه ئې مذکور وي، مثال: مَا جَاءَنِي القومُ إِلَّا زيدًا.

(3)الثالث: په كوم كلام كښې چه مستثنٰی وي هغه كلام په دوه قسمه وي:

(1)كلام موجب، (2)كلام غير موجب.

دَ كلام موجب تعريف: كلام موجب هغه ته وائي چه په هغه كښې نفي يا نهي يا استفهام نه وي، مثال: جاءني القومُ إِلَّا زيدًا.

دَ كلام غير موجب تعريف: كلام غير موجب هغه ته وائي چه په هغه كښې نفي يا نهي يا استفهام وي، مثال: ما جَاءني القومُ إِلَّا زيدًا.

## بدانكه اعراب مستثنٰی بر چهارم قسم است

دَ اعراب په اعتبار سره دَ مستثنٰی څلور قسمونه دي:

(1)قسمِ اول: په پنځه صورتونو كښې به مستثنٰی منصوبه وي:

(1) چه مستثنٰی متصل دَ إِلَّا نه بعد په كلام موجب كښې واقع وي، مثال: جاءني القومُ إِلَّا زيدًا.

(2) مستثنٰی منقطع دَ إِلَّا نه بعد په كلام موجب يا په كلام غير موجب كښې واقع وي، مثالونه:

كلام موجب مثال: جاءني القومُ إِلَّا حمارًا.

كلام غير موجب مثال: مَا جاءني القومُ إِلَّا حمارًا.

(3) كله چه مستثنٰی په مستثنٰی منه باندے مقدم شي دَ إِلَّا نه بعد كه كلام موجب وي او كه غير موجب وي. مثالونه:

كلام موجب مثال: جاءني إِلَّا زيدًا القومُ.

كلام غير موجب مثال: مَا جَاءني إِلَّا زيدًا القومُ.

(4)كه مستثنٰی دَ خَلا او عَدَا نه بعد واقع وي، دَ اكثر علماء په نزد مستثنٰی به منصوبه وي ځكه چه خَلا او عَدَا دواړه فعلونه دي او په دے كښې هُوَ ضمير مستتر ئې فاعل دے او مستثنٰی به دَ مفعول به دَ وجه نه

منصوبه وي، او دا پوره جمله به دَ ماقبل لپاره حال وي، مثال: جاءني القومُ خَلا زيدًا وَّعَدَا زيدًا. ترجمه: ځما خوا ته قوم راغلے په داسے حال کښ چه دَ زيد نه خالي وو.

او بعض علماء فرمائي چه مستثنٰى به مجروره وي ځکه چه خَلا او عَدا حروف جاره دي خپل ما بعد لره جر ورکوي، مثال: جاءني القومُ خَلَا زيدٍ وَّعَدا زيدٍ.

(5) چه کله مستثنٰى دَ مَا خَلا، مَا عَدا، لَيْسَ او لَا يكونُ نه بعد واقع وي نو مستثنٰى به په هر حال کښ منصوب وي ځکه چه مَا خَلَا او مَا عَدَا کښ مَا مصدريه دے چه هميشه په فعل باندے داخليږي، نو خَلا او عَدَا به دواړه فعلونه شي او هُوَ ضمير به ئې فاعل شي او مابعد مستثنٰى به دَ مفعول به دَ وجه نه منصوب شي، مثال: جاءني القوم مَا خَلَا زيدًا وما عَدَا زيدًا.

ليس او لا يكون کښ به ضمير مستتر شي او هغه به ورلره اسم شي او مابعد مستثنٰى به دَ خبر کيدلو دَ وجه نه منصوبه شي ځکه چه دا دواړه افعال ناقصه دي، او دَ افعال ناقصه خبر منصوب وي. مثالونه: قام القومُ لَيْسَ خَالدًا، يصُوْمُ القَومُ لا يكونُ بكرًا.

(2)قسم ثاني: چه مستثنٰى متصل دَ إِلَّا نه بعد په کلام غير موجب کښ واقع وي او مستثنٰى منه ئې مذکوره وي، نو په دے صورت کښ مستثنٰى منصوب او دَ مستثنٰى منه نه بدلُ البعض دواړه وئيل جائز دي، چه منصوب ئې ذکر کړې دَ مستثنٰى دَ وجه، مثال: ما جاءني أَحَدٌ إِلَّا زيدًا او مرفوع ئې ذکر کړې بطور بدل البعض، مثال: ما جاءني أحدٌ إِلَّا زيدٌ.

(3) قسم ثالث: مستثنٰى مفرّغ (يعني چه مستثنٰى منه ئې مذکور نه وي) چه په کلام غير موجب کښ واقع وي نو په دے صورت کښ به دَ مستثنٰى اعراب دَ عامل مطابق وي که عامل رافع وي نو مستثنٰى به مرفوع وي،

مثال: ما جاءني إلّا زيدٌ. كه عامل ناصب وي نو مستثنٰی به منصوبه وي، مثال: ما رأيتُ إلّا زيدًا. او كه عامل جاره وي نو مستثنٰی به مجروره وي، مثال: ما مررتُ إلّا بزيدٍ.

(4) قسم رابع: چه مستثنٰی دَ غَيْرَ، سِوٰی، سَوَآءَ، حَاشَا نه بعد واقع وي نو مجرور به وي، مثال: ما جاءني القومُ غيرَ زيدٍ وسوٰی زيدٍ وسوآء زيدٍ وحاشا زيدٍ.

فائده: په مذكوره تمام مثالونه كښ چه كوم اعراب دَ مستثنٰی بإلّا دي كه إلّا لرې كړې او دَ هغې په ځائے غَيرَ قائم شي نو مستثنٰی والاعراب به په غيرَ باندے راشي، او مستثنٰی به په خپله مجروره شي، مثال: جاءني القومُ غَيْرَ زيدٍ.

فائده: لفظ غيرَ واضع وضع كړے دے لپاره دَ صفت مګر كله نه كله دَ استثناء دَ پاره استعماليږي، مثال: جاءني القومُ غيرَ أصحابكَ.

إلّا واضع وضع كړې لپاره دَ استثنایٔ مګر كله نه كله دَ صفت دَ پاره استعماليږي، مثال: لَا إِلٰه إِلَّا اللّٰهُ أَيْ غيرُ اللّٰهِ.

## تمرين (37)

مستثنٰی قسمونه، ترجمه وتركيب

جاءنِي القومُ إِلَّا أَحْمَدَ، اِحْتَرَقَتِ الدَّارُ إِلَّا الْكُتُبَ، جَاء الْمُسَافِرُوْنَ إِلَّا سَعِيْدًا، ينجَحُ إِلَّا الْكَسُوْلَ التَّلَامِيْذُ، يَنْجَحُ التَّلَامِيْذُ إِلَّا الْكَسُوْلُ، مَا جَاءَ إِلَّا خَالِدًا أَحَدٌ، جَاءَ إِلَّا سَلِيْمًا أَحَدٌ، جَاءَ الْقَوْمُ خَلَا عَلِيًّا، جَاءَ الْقَوْمُ عَدَا رَشِيْدٍ، قَامَ الْقَوْمُ لَيْسَ خَالِدًا، يَصُوْمُ الْقَوْمُ لَا يَكُوْنُ بَكْرًا، يَدْخُلُ النَّاسُ مَا خَلَا رَشِيْدًا، مَا شُفْتُ إِلَّا عَلِيًّا، وَلَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ إِلَّا الْحَقَّ، فَهَلْ يُهْلَكُ

إِلَّا الْقَومُ الْفَاسِقُوْنَ، مَا فَعَلُوْه إِلَّا قَلِيْلٌ مِنهُمْ، لَا يَقُمْ أَحَدٌ إِلَّا سَعِيْدٌ، مَا أَكْرَمْتُ أَحَدًا غَيْرَ أُسْتَاذٍ، رَأَيْتُ النَّاسَ مَا حَاشَا قُرَيْشٍ، صُمْتُ هٰذَا الْأُسبُوْعَ عَدَا يَوْمِ الْجُمُعَةِ، نَجَحَ الطُّلَّابُ حَاشَا الْمُهْمَلِيْنَ، فَسَجَدَ الْمَلَآئِكَةُ إِلَّا إِبْلِيْسَ، وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ، فَأَنْجَيْنَاهُ وَأَهْلَه إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِيْنَ.

## ضميمه در فوائد متفرقه

**فائده1**: مرفوعات تهول اته دي: (1) فاعل، مثال: ضرب زيدٌ، (2) نائب فاعل، مثال: ضُرِبَ زيدٌ، (3) مبتداء، او(4) خبر، مثال: زيدٌ قائمٌ، (5) حروف مشبه بالفعل خبر، مثال: إِنَّ زيدًا قائمٌ، (6) افعال ناقصه اسم، مثال: كَانَ زيدٌ قائمًا، (7) ما ولا المشبهتان بليس اسم، مثال: مَا زيدٌ قائمًا، (8) لائے نفي جنس خبر، مثال: لَا غُلامَ رجُلٍ ظريفٌ في الدَّار.

**فائده2**: منصوبات تهول دولس دي: (1) مفعول مطلق، مثال: ضربتُ زيدًا ضربًا، (2) مفعول به، مثال: ضرب زيد بكرًا، (3)مفعول فيه، مثال: صُمْتُ يَوْمَ الْجُمُعَة، (4) مفعول له، مثال: قمتُ إكرامًا لزيدٍ، (5) مفعول معه، مثال:جاء الْبَرْدُ والْجُبَّاتِ، (6) حال، مثال: جاءني زيدٌ راكبًا، (7) تمييز، مثال: طابَ زيدٌ نَفْسًا، (8) مستثنٰى، جاءنى القومُ إِلَّا زيدًا، (9) حروف مشبه بالفعل اسم، مثال: إِنَّ زيدًا قائمٌ (10)افعال ناقصه خبر، مثال: كَانَ زيدٌ قائمًا، (11) لائے نفي جنس اسم، مثال: لا غُلَامَ رَجُلٍ ظريفٌ في الدَّارِ، (12)ما ولاالمشبهتان بليس خبر، مثال: مَا زيدٌ قَائمًا.

## تمرين (38)

دَ مرفوعاتو او منصوباتو نشاندهي وكړئ

عَادَ بَكْرٌ مِنَ الرِّحْلَةِ إِلَى الْمَنْزِلِ مَسْرُوْرًا، وَثَبَ القِطُّ وثُوْبَ الْأَسَدِ، أَمْسَى الْعَاصِيْ تَائِبًا، سَافَرَ مَحْمُوْدٌ طَلَبًا لِلْعِلْمِ، جَلَسْتُ تَحْتَ الشَّجَرَةِ، جَلَسَ الْأُسْتَاذُ، اَلْأَنْبِيَاءُ أَصْدَقُ النَّاسِ لِهْجَةً، لَا رَجُلٌ حَاضِرًا، كَأَنَّ الْعِلْمَ نُوْرٌ، مَا هٰذَا بَشَرًا، اَلْوَرْدَةُ جَمِيْلَةٌ، اِسْتَوَى الْمَاءُ وَالخَشَبَةَ، لَا غُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٌ فِي الدَّارِ، يُصَلِّ الْمُسْلِمُوْنَ، حَضَرَ الْأَصْدِقَاءُ إِلَّا خَالِدًا، مَحْمُوْدٌ أَكْبَرُ مِنِّيْ سِنًّا، لَاتَأْكُلِ الطَّعَامَ حَارًا، عَلِمْتُ أَنَّ الْاِمْتِحَانَ قَرِيْبٌ، أَصْبَحَ الْمَرِيْضُ مُسْتَرِيْحًا، الْكِتَابُ مَفْتُوْحٌ، أَكَلَتِ الطِّفْلَةُ تُفَّاحَةً، مَا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ، يَغْفِرُ اللّٰهُ التَّائِبَ، أَكَلَ الْوَلَدُ أَكْلَتَيْنِ، دَخَلْتُ غُرَفَ الْبَيْتِ مَا خَلَا غُرْفَةِ النَّوْمِ، لَا صَاحِبَ عِلْمٍ مَمْقُوْتٌ.

تَمَّتْ بِعَوْنِ الْمَلِكِ الْعَزِيْزِ العَلَّامِ وَآخِرُ دَعْوانَ أَنِ الْحَمْدُ للّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، عليه التمام، فالحمد للّٰهِ ذِي الانعام
الموفّق للإِتمام والصلوة والسلام على رسوله محمّدٍ خَيرِ الأَنام وعلى آله الكرام وأصحابه العظام ما تعاقبت الليالي والأيام.